# شهامت

نهم کال، دریمه ، پرلپسې ۵۳ مه ګڼه، ذوالحجة الحرام ۱۴۳۶ هق ، ستمبر ۲۰۱۵م

پـه جـهـادکـې دمطبوعاتي فعالیت ارزښت

طالبانو ولې (طلوع) او (یک) چینلونه وګواښل؟!

دامریکا، نوې استراتیژي دناکامو تجربو ناکام تسلسل !!

آخرهم،

دطالبانو پرپوځي وړتیا اشغالګرو اعتراف وکړ!!

مدرسه و پېژنئ!

اشتباه بزرگ در آزمون شکست؟!

ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله خپل ولس اومسلمان ملت ته څه وکړل؟

د سترو فتحو لړۍ دوام لري

دهېواد دعلمي، جهادي او روحاني شخصیت
مولوي عبد الهادي اخندزاده ژوند او خدمتونو ته کتنه

د غزني زندان د ماتېدو په اړه د ولایت له جهادي مسؤل سره مرکه

# شهامت

## علمي، کلتوري او اسلامي مجله

نهم کال ۳مه، پرلپسې ۵۳ گڼه، ذوالحجة الحرام ۱۴۳۶هـ ق ستمبر ۲۰۱۵م

لړلیک




**دامتیاز خاوند :**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :**

ابو ظهیر

**کتنپلاوی :**

شاهد "حقاني " لطیف عزم
حسن " علوي" بلال "وحید"
نعیم " صافی " عابد مجاهد
قاري حبیب

**بیه :**

یوه ګڼه ۲۰ افغانۍ او ۳۰
کلدارې په پاکستان کې

**تخنیکي مسؤل :**

تخنیکي څانګه


**یادونه**

شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو مسؤلیت
په غاړه نه اخلي.

ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان    بریښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

# د امریکا!

## نوې استراتیژي!

## دناکامو تجربو!

## ناکام تسلسل...!

نږدې یوه اوونۍ وړاندې سپینې ماڼۍ زمونږ په ګران هېواد( افغانستان) کې د یوشمېر یرغلګرو امریکایي پوځیانود پاتې کولو نوې تګلاره اعلان کړه، چې له مخې به یې د ۲۰۱۶زکال ترپایه پورې په افغانستان کې دامریکا ۹۸۰۰ اوله هغه وروسته ۵۵۰۰ سرتیري پاتې وي.

د سپینې ماڼۍ دغه ظالمانه او مغرورانه پرېکړه ښيي چې دامریکا یې ښکېلاک د پالیسۍ جوړونکو مغزو ته لا سد ندی ورغلی، هغوی په نړۍ کې دخپلو شیطاني عزایمو او ارادو دلومو غځولو څخه ستړي او لاس په سر شوي ندي! بلکې هنوز هم افغانستان اوپه سیمه کې دصلیبي تاړاک وحشتونو اوظلمونو ته ددوام موندلوپه فرضي او نامرئي عواملو پیداکولو مصروف اولګیا دي.

دسیاسي او پوځي کتونکو په اند: امریکا دافغانستان په شان هېواد په مهم جغرافیوي موقعیت اواستراتیژک استقامت کې د ګاونډیو هېوادو دننه د استعماري موخو ترلاسه کولو ،خپل شیطاني رول د تقویې او شومو مغرضانه لاسوهنو ته دچانس اوفرصت برابرولو لپاره پوځي شتون اړین بولي! ښکاره ده چې د همداډول استراتیژۍ او د جګړې د دوام ترشاه دامریکا دمقننه څواک (کانګریس) ملاتړ هم موجود دی چې زیاتره غړي یې په یوه خوله له افغانستانه دټولو امریکا یي پوځیانو وېستل اشتباه بولي! او هم دپنټاګان ځیني جنرالان په سیمه کې دجګړې غځولو په نیت دیوه بل نوي جنګي ائتلاف درامنځته کولو اشارې هم ورکوي. لنډه داچې دامریکا نوې استراتیژي هیڅکله تصادفي یا دځوتنو لخوا پرېکړه نه؛ بلکې دټول امریکایي ولس د جګړه مار ذهنیت عکاسي ده.

خو هر دشعور او پوهې څښتن پوهیږي چې دامریکا یانو دظالمانه اشغال ۱۴کلنې دورې افغانستان او سیمې ته نه هېریدونکې بدمرغۍ اونه جبرانېدونکي زیانونه راوړي، داچې اوس په راتلونکي کې هم امریکا دخپلې شیطانې ارادې نه

لاس په سر نه ښکاري! دافغانستان په ګډون دټولې سيمې دولسونو لپاره بد زيرى دى! چې حتماً به يې له امله افغانستان او دسيمې هېوادونه دمنطقوي رقابتونو په وجه داستخباراتي کشمکش او نيابتي جګړو په ډګر و اوړي.

هو! د صليبي اشغال تمديدل به خامخا افغانستان او سيمې لپاره نور داسې بوړنوونکي زيانونه راوړي ،چې دعواقبو له پلوه به هغه په افغانستان او سيمه منفي تاثيرات پرېباسي.

او حتمي ده چې افغانان او ګاونډيان به په دې مورد کې سرله اوسه خپل نازک مسؤليتونه او درانه وجايب درک کاندي، هغوى بايد په ګډه دامريکا ددغو شيطاني عزايمو او ارادوپه وړاندې ښه ځېر اوبيدار اووسي، ځکه د۱۴کلن صليبي جنګ ترخو تجربو وښوده، چې ددې ناروا جنګ په لمبو کې نه يواځې افغان ولس ترننه کړيږي او ځوريږي بلکې ورسره په چم او ګاونډ کې مېشت ولسونه او پرګنې هم پکې لولپه کېږي!

نواوس دې نړيوال هم نور خپلې سترګې ښېرته کړي اوپه دې دې قانع شي چې نړيوال امنيت ترډېره ځايه دافغاني قضيې دواقعبينانه حل او ا منيت سره تړاو لري، اوروښانه ده چې دافغانستان ثبات، امنيت او راتلونکى د[افغانستان اسلامي امارت] پورې تړلى دى، ځکه امارت اومجاهدين دافغانستان دننه ترنورو زيات مؤثر،سياسي او جهادي جهت دى ! بايد نړيوال په ورين تندي دغه روڼ حقيقت تسليم او له زړو نه په منلو سره دې د افغانستان په باب په هرتصميم او هره پرېکړه کې دامارت دموقف او دريځ درناوى وکړي.

بې له شکه افغان ولس چې دکومې جګړې ، ستونزو او ناخوالو قرباني دى، اساسي وجه يې داده چې دنړۍ بډاى او زبرځواک هېوادونه دخپل انانيت ددفاع لپاره دبيرته پاتې ولسونو بالخصوص دمسلمانانو په ملي شتمنيو او زېرمو باندې خېټه اچولې، چې دادى نن يې دساتنې په نوم دافغانستان له ارضي تماميت څخه دسپر په توګه کار اخلي.

**امريکاد همدې موخو دترلاسه کولو په غرض له تېرو ۱۴ کلو راهيسې د خپلې پرمختللې جنګي ټيکنالوجۍ او د پرېمانه وسلو اوتجهيزاتو سربېره ځان سره د پراخ نړيوال سياسي، اقتصادي او پوځي ملاتړ په متو افغانستان او سيمې ته جنګونه، مرګونه او ناورينونه راوړل، دخپل بري لپاره يې هرډول موډرنې وسلې وکارولې.**

**خو! ددې ټولو باوجود يې هم برى په برخه نه شو دشکست، خجالت،رسوايي او شرمنده ګۍ پرته يې بل څه ترلاسه نکړل اوس ددې لپاره چې له نړيوالو څخه خپله کرغېړنه او شکست ځپلې څېره پټه وساتي افغانستان کې داشغال تمديدولو انګازې خپروي او دخپلو يوشمېر عسکرو دپاتې کېدو په عنوان نوې استراتيژي اعلانوي! چې دا به امريکا ته له دې پرته چې دخپلو پاتي کېدونکو پوځيانو ژوند په خطر کې واچوي بله کومه لاسته راوړنه په برخه نکړي او نه به په دې سره خپلو مورال بايللو ګوډاګيانو ته سېک ور وبښي.**

له دې سره سره په ټوله کې دامريکا يې ښکېلاک د شومو پلانونو او ارادو شنډولو لپاره دافغانانواو مسلمانانو خپلمنځي اتحاد او يو والى اړين دى اوهم امريکا او نړيوالو ته په دې غوږونه خلاصول پکاردي چې په افغانستان او سيمه کې دواقعي امنيت ،ثبات، خوشالۍ اود ترقۍ لپاره د افغانستان له خاورې څخه دټولو اشغالګرو عسکرو وتل حتمي او ضروري دي! له دې پرته بله هره استراتېژي او تګلاره به دناکامو تجربو؛ ناکام تسلسل وي!!

# طالبانو ولې طلوع او یک

# چینلونه وګواښل؟!

شاهد غزنیوال

د روان کال د تلې د میاشتې په ۲۰ نیټه د افغانستان د اسلامي امارت نظامي کمیسیون په یوه فوق العاده پوځي اخطاریه کې د طلوع او یک په نوم تلویزوني شبکې وګواښلې او هغه یې د پوځي اهدافو په لیست کې شاملې کړلې.

داچې ولې اسلامي امارت اړ شو یادې رسنۍ په خپلو پوځي اهدافو کې شاملې کړي په لاندې کرښو کې په مختصر ډول وربان‌دې بحث کوو.

په افغانستان باندې د امریکایانو له پوځي یرغل سره سم هغوی د دغه یرغل د توجیه کولو او یا هغه ته د مشروعیت ورکولو لپاره خپل تبلغاتي یرغل هم پیل کړ.

هغوی په افغانستان کې د تبلیغاتي یرغل د موفقیت لپاره په هماغه اندازه دقیق پلانونه په کار واچول څومره چې یې د پوځي یرغل لپاره تیاری په پام کې نیولی و.

امریکایانو ترهرڅه له مخه د خپلوهمدغو تبلیغاتي وسائلو او رسنیو له لارې یوشمیر ځانګړې مصطلحات ایجاد او بیایې د افغان ولس په اذهانو کې دهغوی د ځای پر ځای کولو لپاره فعالیت پیل کړ.

دیموکراسي ، د بیان آزادي ، له ترورېزم سره مبارزه د ښځو حقوق او... هغه څه و ل چې په افغانستان کې د غربي میډیا د فعالیت د تمرکز نقطه بلل کیده او دوی خپل ټول جنګي جنایات تر دغې نقطې لاندې پټول.

امریکایانو د خپل تبلیغاتي یرغل د پرمختګ لپاره په افغانستان کې په سلګونو چاپي او صوتي رسني او تلویزوني شبکې ایجاد او د هغوي د مدیریت او انتظام چارې یې یوشمیر داسې افغانانو ته وسپارلې چې هغوی امریکایي مصالحوته خپله تر امریکایانو هم ډیر ژمن او وفادار پاتي شوي ول.

د دغو رسنیو په منځ کې طلوع او یک تلویزوني شبکې د غربي ملوثو افکارو د ترویج لپاره تر ټولو پرمختللې او له تخنیکي او مسلکي لحاظه فعاله رسنۍ دي چې هم یې د خلګو په منځ کې شهرت تر لاسه کړی او هم امریکایي منافعو ته تر نورو هغو ډیرې وفادارې دي .

دغو دواړو رسنیو د امریکایانو د پوځي فعالیتونو د انعکاس ترڅنګ په افغاني مسلمانه ټولنه کې د غربي لویدلي فرهنګ د ترویج او خپراوي لپاره هم ډیرې هلې ځلې وکړې.

هغوی د خپلو مختلفو پروګرامونو له لارې د بې حجابي، اختلاط، بیدني او الحاد دخپراوي ترڅنګ د افغانانو د اصیل اسلامي فرهنګ او دهغوی د سپیڅلو د ارزښتونو پرخلاف نشرات لرلې چې وخت ناوخت د افغان مؤمن ولس له کرکې سره سره مخ او دهیواد په بیلابیلو ولایتونوکې د پوهنتونونو د محصلینو او د مدارسو د زده کوونکو لخوایي په خلاف لاریونونه هم شوي دي.

طلوع اویک ټلویزوني چاینلونو په فرهنګي برخه کې دفکري تخریب تر څنګ په پوځي برخه کې هم ددښمن دپوځي عملیاتو او د هغوی د لاسته راوړنو د انعکاس په برخه کې یې ددښمن دیوې فعالې پوځي رسنۍ په حیث رول اداء کړي.

د بیلګې په توګه د طلوع تلویزون خبریالان چې کله د کابل رژیم د پوځي فعالیتونو د انعکاس لپاره کومې پوځي ساحې ته ځي د هغوي په دومره پلویتوب سره خپل رپوټ تر

تیبوي چې سړی دا نښي تشخیصولای چې دا رپوټ د دفاع وزارت د نشراتو د ریاست د رسمي کارکوونکو لخوا ترتیب شوی او که د یوه غیر دولتي تلویزون د خبریال لخوا؟.

آن تردې چې د طلوع تلویزون خبریالان له پوځي ساحې څخه د خبري پوښښ پر مهال کټ مټ هماغه ضدمرمي خولۍ او واسکټونو کاروي کوم چې د ملي اردو ځواکونه د محاربي په مهال تري استفاده کوي .

که څوک له جګړه ییزې ساحې څخه د خبري پوښښ پرمهال د طلوع ټلویزون د خبریال لایف خپرونه (نشر-مستقیم) ویني هغه هیڅ دا فکر نه کوي چې دا دې دکومې آزدې رسني خبریال وي ؛ بلکې پر دې به یي یقین وي چې دا د دفاع وزارت د نشراتي څانګې اړوند کوم موظف مطبوعاتي ټیم دی او خپلې اړوندې مرجع ته له ساحې څخه د خپلو پوځي فعالیتونو رپوټ ورکوي.

هره رسنۍ دا مکلفیت لري چې د جګړې له ساحې څخه د رپوټ ورکولو پر مهال د خپلې اړوندې مرجع مربوط شعار او مخصوص د مرمۍ ضد خولۍ او واسکټ چې Press لیکل شوی وي کاروي ، او د جګړې شکیل اړخونه د خبریالانو د دغه مخصوص لباس لرونکو خبریالانو د خوندیتوب اومصؤنیت مسؤلیت لري .

داچې د طلوع او یک خبریالان په لوی لاس د جګړې په ساحه کې هغه لباس اغوندي کوم چې د رژیم پوځي افراد کاروي او دهغوي په ټانګونوکې له هغوی سره یوځای دمجاهدینو تعقب کوي او یاهم هغه خبري او اصطلاحات کاروي چې د رژیم مطبوعاتي چارواکي یي په خپلو رسمي څرګندونو کې د مجاهدینو په ضد کاروي نو مجاهدین مجبور دي له همدغو رسنیو او دهغوي له خبریالانو او ټولو اړونده چاراکو سره هغه تعامل وکړي کوم چې د پوځي مقاومت پر مهال د دښمن له افرادو سره کوي .

ځکه دغو رسنیو او دهغوی کارکوونکو د دښمن په طرفداري کې خپل مهني او مسلکي حیثیت په خپله تر پښولاندې کړی ، نو مجاهدین مجبور دي چې له هغوي سره د دښمن د پوځي افرادو په حیث عمل وکړي نه د مسلکي بې پرې خبریالانو او مطبوعاتي کارکوونکو په توګه د طلوع ټلویزون خبریالان د رژیم ماتې خوړلیو عسکرو ته د مورال ورکولو لپاره د جګړې له ساحې څخه په خپلو رپوټونو کې یواځې هغه معلومات خپل مرکز ته ورکوي چې د درژیم د پوځي چارواکو لخوا ورته ویل کیږي ، د بیلګې په توګه د رژیم چارواکې مجاهدینو ته د تروریستانو نوم کاروي او غواړي ددې نوم په کارولو سره خپل جنایات پټ کړي ، د طلوع خبریالان د رژیم دپوځي چارواکو په اقتفاء په خپلو خپرونو کې دمجاهدینو لپاره عین همدا نوم کاروي او د رژیم په خلاف د هغوی مقاومت توهینوي .

حال داچې یوه بې پرې رسنۍ په خپل رسنیز فعالیت کې دا صلاحیت نه لري چې په هیڅ ډلې هم خپل حکم وکړي او یا دهغوی پرخلاف د جانب مقابل په ګټه تبلیغات وکړي.

که څه هم چې د طلوع اویک چاینلونو په اړه د اسلامي امارت د پوځي کمیسیون اعلامیه د ځینو غربي چارواکو او موسسو لخوا غندل شوې او د دوی په اصطلاح د خبریالانو ګواښنه جنګي جنایت بلل شوی ، خو اسلامي امارت په یادې اعلامیې کې په وضاحت سره د بې پرې رسنیو او دهغوی د کارکوونکو مصؤنیت د ځان مکلفیت ګڼلی .

په یاده اعلامیه کې د طلوع اویک تلویزوني شبکې دهغوی د رسنیز فعالیت له مخې نه بلکې د هغوی دتبعیضي- کړنو اوښکاره پلویتوب له مخې ګواښل شوې چې داکار د دښمن په خلاف د مجاهدینو له کاري اجراآتو څخه ګڼل کیږي نه د خبریالانو او خبري رسنیو په خلاف دهغوي غیر مجاز فعالیت .

# آخر هم، د طالبانو پر پوځي ورتیا

## اشغالګرو اعتراف وکړ!!

وروستیو تحولاتو جوته کړه، چې داسلامي امارت مجاهدین دځپل ځواک او پوځي ورتیا مظاهره کوي اودغربي نیواکګرولخوا ډیرې اشغال شوي سیمې، یوپه بل پسې له اجیرو ملیشو او ټوپکوالوڅخه په تیزۍ سره نیسي ،ددې کال د(عزم ) پرمختیاوو په ډاګه کړه، چې که غربي باداران له ځپلو زر خریدو غلامانو څخه لاس واخلي، نو دکابل حکومت طالبانو ته هغه دچا خبره(یو وارنسوار) هم ندی اوطالبان به په کلونو نه بلکې دځومیاشتو په جریان کې به ټول افغانستان باندې دځپل حکومت وزرې وپړکوي !

داخبرې هسې ادعاوې ندي، بلکې هغه مسلم حقیقت دی ،چې پخپله یرغلګر او ددوئ لاسپوځې اداره یې هم له چاڅخه نه پټوي او اوس چې ددوئ دواک سا ه نوره مرۍ ته رسیدلې، نو له خلکو یې نور دپټیدو شونتیا کمه بولي.

دې اواخرو کې دملل متحد ادارې په یوه څیړنه کې وویل :چې طالبان د ۲۰۰۱م واک او ځواک ته ورګرځیدلي،د ملګرو ملتونو د ادارې څخه په څېره شوې یوه څیړنه کې ویل شوي: چې طالبان اوس یو ځل بیا په افغانستان کې هغسې خپاره شوې، لکه څرنګه چې په ۲۰۰۱ کال کې وو.

د نیویارک ټایمز (امریکایي رسنۍ) له خبر سره سم د ملګرو ملتونو د وروستیو معلوماتو او له سیمه ایزو چارواکو سره د مرکو پر بنسټ ترسره شوي څیړنه کې دوئ ته دا جوته شوي، چې طالبان یو ځل بیا د( ۲۰۰۱) کال قوت ته ورګرځیدلي.

د ځایي چارواکو په وینا د امنیتي ستونزو له کبله د ملګرو ملتونو د یوناما ادارې له خپلو( ۱۳ )ولایتي مرکزونو څخه څلور دفترونه په بشپړه توګه تړلي.

له راپور سره سم د ملګرو ملتونو د مختلفو ادارو څخه د امنیتي وضعیت په اړه راټول شوي هغه معلومات ،چې د کندز تر سقوط وړاندې د سپتمبر په میاشت کې راټول شوي، ښکاره کوي، چې د ملګرو ملتونو چارواکو دافغانستان نیمایي برخه د امنیتي لحاظه خطرناکه او ډیره خطرناکه بللې، چې دا کچه د کندز د سقوط او همدارنګه دهیواد په ګوټ ګوټ کې د طالبانو د بریدونو او پرمختګونو له کبله لا زیاته شوي.

د نیویارک ټایمز د راپور پر ارساس د ملګرو ملتونو اداره خپل دغه معلومات د رسنیو سره نه شریکوي، بلکې په افغانستان کې د بهرنیو ځواکونو د ایتلافي هیوادونو سره یې په پټه شریکوي.

ورځپاڼه زیاتوي چې د ملګرو ملتونو دغه راپور د امریکایي قومندان (جون کامپیل )د هغې ادعا په خلاف معلومات ورکړي ،چې نوموړي د کانګریس په وړاندې وکړه او ویې ویل چې «افغان ځواکونه په میړانه د طالبانو په خلاف جنګیږي او دوئ اوس هم په اوضاعو واکمن دي، پلازمینه، د هیواد ټول ولایتي مرکزونه او د ولسوالیو مرکزونه د دولتي ځواکونو په لاس کې دي........

دکندز بشپړه فتحه ،دتخار ،بدخشان ،بغلان ،سرپل ،فاریاب ،غزني او نورووولایتونو غونډې دلویو ولسوالیو او ستراتیژیکو نقاطو نیول او هلته سپین بیرغ رپول، څه معمولي او تش دخولي خبرې ندي، بلکې داستره پوځي لاس ته راوړنه او تیرو څوارلسو کلونو کې دنړیوالو داټکلونو خلاف هغه پرمختګونه دي ،چې له امله یې دامریکا او متحدینو لینګي ورپیدل ،ټوله څوارلس کلنه خواري یې په سیند لاهو شوه او دامیدو نو په بزغلي یې خړ سیلاب راغی .

دامریکایانو له بي رحمانه بمبارد نه چې آن د(بې سرحده ډاکترانو )روغتون یې هم په ظالمانه شکل بمبارد او نږدي(۸۰)شاخوډاکتران ،مریضان او په عوضان یې پکې دخاورو سره برابرکړل،دکندز ښاریان یې دماتم په ټغر کښینول او ډول ډول جنایات یې هلته ترسره کړل ، داسلامي امارت مشرتابه خپلو اړوندومجاهدینوته امر وکړ، چې دکندز اطرافوته عقب نشیني وکړي او خپل ولس باندې ترحم وکړي .

دکندز دښار نه دمجاهدینو خروج یو تکتیکي شاته تګ دی او لکه څرنګه چې امارت په یوه خپره شوي اعلامیه کې څرګنده کړه ،چې مونږدځه جهادي تکتیکونو او دولسي وګړودژوندډمصؤنیت په نیت لدي ولایت له مرکزه شاتګ کړی او دښار په څنډو کې مو مورچې جوړې کړي ،دخپل مسلمان ولس او مجاهدینو سره دامارت دمشرتابه هغه خواخوږي ده، چې آن پخپله داشغالګرو امریکایانو سپینې ماڼۍ هم دطالبانو ددې اعلامیې تود هرکلی وکړاودایې وستایه ، د(تور اوباما دسپینې ماڼۍ)دې هرکلې په زباد ورسوله، چې دامارت اسلامي اهداف سوله ایز او دنړۍ ولسونو ته دحسن ارادت پیغام لري اوهم داچې طالبان ،لکه څنګه چې اشغالګرو (ترهګر!!!)بلل، محض تحکم او بلا دلیله مدعی ده .

اسلامي امارت پخپله اعلامیه کې وویل چې :

داچې اسلامي امارت د نظامي مصلحت په بنیاد د ښار د دفاع اوږده جګړه چې د مجاهدینو د ځاني تلفاتو او مهماتو د بې اغیزې مصرف باعث ګرځېده، د دغسې بې ګټې جګړې په عوض یې ښه وبلله چې د ښار د ساتنې په ځای د ښار په اطرافو کې خپل مواضع مضبوط او خپل بشري او تدارکاتي توان د راتلونکو اغیزمنو عملیاتو لپاره وساتي نو ځکه یې مجاهدینو ته د ښار له څلور لاریو، مارکیټونو او دولتي ودانیو څخه د عقب نشینۍ امر وکړ.

موږ ټولې نړۍ او خپل مجاهد اولس ته ډاډ ورکوو، لکه څرنګه چې د کندز مجاهدینو د امریکایانو او داخلي ګوډاګیانو ځانګړي ځواکونو له هوایي ملاتړ سره سره په بیا بیا له ښاره وایستل او څو ځله یې د هوایي ډګر تر ټرمینله وځغلول، همدا اوس هم مجاهدین کولای شي چې د الله تعالی په مرسته کندز ښار تر خپل بشپړ تصرف لاندې راولي او دښمنان یوځل بیا تیښتې ته اړ باسي.

د کندز ښار له بازار او دولتي ودانیو شاته تګ یوازې دجهادي مصلحت له امله شوی چې ستر غرض پکې د ملکي خلکو له بمبار څخه محفوظول او په اوږده بې اغیزې دفاعي جګړه کې د جهادي بشري ځواک او مهماتو د ضیاع مخنیوی دی...........

له ښه بخته چې دادی نن همدا نیوالګرطالبان دخپلو پرونو ځرګندونوخلاف یوقوت بولي او ترهګر ورته لدې امله نشي ویلای چې دا ادعی ثابتولای نشي .

دې خبره کې هم کوم شک او تردد ندی پاتي ،چې ددومره سترو قربانیو او دربدریو سربیره بیا هم طالبان یو داسې ځواک پاتي دی، چې نن یې پخپله ملګري ملتونه او امریکایان هم مني او پدې معترف دي، چې دطالبانو قوت ،نن یو ځل بیا د(۲۰۰۱ز)کال ته ورګرځیدلی او نن بیا دوئ دومره ستر قوت دی ،چې کولای شي، دځو ساعتونو په ضرب کې دکندز غوندې ستراتیژیک سوق الجیشي- ولایت ونیسي- او دشمال غوندې هغومناطقو کې چې امریکایانو به مصؤني سیمې بللې دنور هیواد په شان دخپلې توري تر بریښ لاندې راولي !

له مخکني وختونو خلاف اوس دا تمه له هر چاسره ځو وارې زیاته شوي ،چې هغه شیبې رانږدې شوي ،چې هیواد کې اسلامي شریعت پلی شي او یرغلګر کفار او مزدوران یې دواک له ګدی لیرې شي،په همدې هیله او تلوسه چې یو ځل به بیا دا ځوریدلی قام دخپلو ارمانونودتکامل شیبې په سترګو ووینې او دشهیدانو هیلې به یې پوره !!!

انشاءالله تعالی

# یوه هیله

حنیف باسولی

ی زما پاکه پالونکیه مهربانه
یوه هیله مې ده زړه کښې له پخوانه

کړاوونه افغانانو ډیر زیات تیر کړل
حوصله، صبر کې کلک وو له هر چانه

ډیرې سختې د ژوندون وربانديې راغلې
د هدف لاره کې هیڅ نه شول ستومانه

له هرخوانه تاړاکونه په دوی وشول
څوک راغلي وو له زمکې څوک هوانه

سرکاسه کې یې انګریز ته اوبه ورکړې
خپل تیري باندې ئې ډیر کړل وپښیمانه

بیا پرې وارد سرو وحشي روسیانو راغی
ورک یې نوم د شوروي کړو له دنیانه

لاتپونه یې د روس، انګریز روغ نه وو
ګوزارونه اوس سخت خوري له امریکانه

دا به هم لکه د تیرو را چپه کړي
کړي به خلاصه دا نړۍ له دې بلانه

فغانان په اتفاق او هم یې پوی کړې
د دې هیلې سرکیده غواړم له تانه

د حنیف باسولي هیله که پوره شوه
یا الله خله به یې ډکه وي ثنانه






# د سترو فتحو لړۍ دوام لري

أبوعابد

د ۱۴۳۶ هـ ق کال د شوال المکرم د میاشتې ۱۲ مه نیټه ده، د کورنیو او یو شمیر نړیوالو رسنیو مخونه په دې سرخطونو ډک دي، په سرپل کې د ۱۰۰ تنه پولیسو له تسلیمۍ وروسته د کوهستاناتو مهمه ولسوالۍ طالبانو ونیوله. د هلمند نوزاد ولسوالي کلابنده او د سقوط په ژۍ ولاړه ده. په کندز کې د اربکیانو تر واک لاندې یوازینۍ پاته سیمه اقتاش د طالبانو لاس ته ولوېده. د کونړ په مروره ولسوالۍ کې طالبانو ۸ پوستې فتحه او پراخې سیمې ونیولې او ...

دا خبرونه اوس د رسنیو ورځنی ورد ګرځیدلی، پخوا هم د افغانستان له لراوبر څخه د مجاهدینو د بریدونو او بریاوو راپورونه ورکول کیدل، خو په دې وروستیو کې د افغانستان په ټولو سیمو کې جګړې کاملا یو بېل شکل غوره کړی دی، د ولسوالیو سقوط، د دښمن د لویو قرارګاوو او غنډونو تسلیمي، د ډلې ډلې اربکیانو تسلیمي او د جهاد په پلوۍ اولسي قیامونه هغه څه دي چې په افغانستان کې روان جهاد یې نوي پړاو ته داخل کړی دی.

په تیرو څو اونیو کې که د دغسې سترو فتوحاتو او جهادي بریاوو بیلګې وړاندې نو څو پیښې یې داسې راخلاصه کولای شو.

د روان ۲۰۱۵ میلادي کال د جولای په دریمه د میدان وردګو په جلریز کې د اربکیانو ۱۴ پوستې فتحه تر ۴۰ زیات اربکیان قتل او ټولې وسلې او مهمات یې مجاهدینو ته غنیمت پاته شول، دغه اربکیان چې د کابل او بامیان تر منځ د لارې د امن ساتلو لپاره ګمارل شوي و، د مجاهدینو په ستر برید کې په بشپړه توګه له منځه لاړل چې د کابل رژیم خصوصا د حزب وحدت ډلګۍ ته یې سخت ټکان ورکړ.

د جولای په شپږمه د فاریاب په پښتون کوت کې مجاهدینو په یوه ستر برید سره د دښمن شپږ پوستې فتحه کړې او ډیرې سیمې یې د دشمن له شتون څخه تصفیه کړې، په همدې ورځ د همدې ولایت په قیصار کې هم مجاهدینو یو مهم بازار او ۸ کلي له دشمن څخه ونیول او د دښمن پوستې او عسکري یې د سیمې پرېښودو ته اړ کړل باید وویل شي چې فاریاب هغه ولایت دی چې د بغلان، کندز او بدخشان غوندې په روان کې ګڼ مهم جهادي فتوحات په کې ترلاسه شوي دي.

د دې پیښې په سبا د جولای ۷ مه د هلمند په کجکي کې مجاهدینو د دښمن درې پوستې فتحه کړې او لوی مقدار مهمات او وسلې په لاس ورغلې، د جولای په ۱۲ نیټه مجاهدینو د هیواد په مرکزي ولایت بغلان کې د ډنډ غوري ولسوالۍ مربوط د ګورکند مهمه پوځي قرارګاه فتحه او په کې میشت پوځیان یې تیښته ته اړ کړل دا په دې ولسوالۍ کې د دښمن وروستۍ پوځي مرکز و چې په سقوط سره یې په دې ولسوالۍ کې دولتي واک ته د پای ټکی کیښودل شول. د جولای په ۱۳ مه مجاهدینو د فاریاب په شیرین تګاب کې د دښمن ۲۲ پوستې فتحه کړې او ۴۰ کلي چې پخوا د اربکیانو تر تسلط لاندې وي

تر واک لاندې راوستل له دې پیښې دوه ورځې وروسته د همدې ولایت په المار ولسوالۍ کې مجاهدینو د دښمن ۱۲ پوستې فتحه او ۴۲ کلي یې د دښمن له واک څخه وایستل، د المار په نیول شویو سیمو کې یوه هم د قرایي په نوم ستراتیژیکه سیمه چې نیولو یې حکومت سخت وارخطا کړ ځکه له دې سیمې مجاهدین کولای شي په اسانه د فاریاب مرکز میمنه ښار تر برید لاندې ونیسي.

د جولای په ۲۵ نیټه د بدخشان په وردوج ولسوالۍ په تیرگران سیمه کې د دښمن یوه ستره قرارگاه په مکمل ډول مجاهدینو ته تسلیم شوه، په دې پیښه کې ۱۲۰ تنه عسکرو وسلې مجاهدینو ته وسپارلې چې په دې وسلو کې ۱۰ میله پیکا ماشیندار، ۱۰ قبضې آر پي جي راکیټ، ۹۰ میله کلاشینکوف، ۳ میله دهشکې، ۲ پایې هوان او یو توپ، له پریمانه مرمیو، مهماتو، نظامي توکو او گنیو عراده جاتو سره شامل.

له دغې قرارگاه سره د دښمن ۶ پوستې هم ونیول شوې، او د سیمې ۱۲ لوی کلي د دښمن له وجود څخه په ټولیزه توگه پاک شول.

په وردوج کې د بشپړې قرارگاه سقوط حکومت له بشپړ حیرت او وارخطایي سره مخامخ کړ په پوره سپین سترگۍ یې ددې خبرې له منلو انکار وکړ او د بدخشان چارواکي یې له دې امله وگواښل چې ولې یې دا خبره رسنیو ته منلې ده.

د وردوج د قرارگاه سقوط په دومره ستره کچه د عسکرو د وسلو غورځولو لومړۍ پیښه وه، خو له دې پیښې دوه ورځې وروسته د جولای په ۲۷ ورته پیښه د سرپل ولایت په کوهستانات ولسوالۍ کې هم تکرار شوه په دې سیمه کې ۱۰۰ تنه اربکیانو په اتفاق سره اړخ بدل کړ، د حکومت له ملاتړ څخه یې لاس واخیست خپلې وسلې یې مجاهدینو ته وسپارلې او خپل تر ولکه لاندې کلي او مناطق یې هم د مجاهدینو په واک کې ورکړل له دې موقعیت څخه په استفاد مجاهدینو د کوهستانات ولسوالۍ په مرکز برید وکړ او یوه ورځ وروسته یې دغه ولسوالي په بشپړه توگه فتحه او د حکومت له واکه وایستله.

د کوهستانات ولسوالۍ په فتحه کې مجاهدینو د نورو ډیرو غنایمو تر څنگ له دښمن څخه ۱۳ عرادې پوځي موټر هم نیولي دي، باید ووایو چې له دښمن څخه نیول شوې وسلې مهمات او په خاص ډول پوځي او زغره لرونکي وسایط د جهادي عملیاتو په مؤثریت کې لوی رول اداء کړی دی.

د سږکال په سترو فتوحاتو کې چې له دښمن څخه گڼې ولسوالۍ او پوځي مراکز ونیول شول، مجاهدینو لسگونو عرادې هغه پوځي موټر هم غنیمت کړي چې په درنو وسلو سمبال دي او د خفیفه وسلو په وړاندې مقاومت کوونکي زغري لري ،د جولای په ۲۸ نیټه چې مجاهدینو د کندز په ولایت کې د اربکیانو وروستۍ سیمه اقتاش چې ۶۵ کلي په برکې نیسي فتحه کړه، دغه راز یې په قلعه زال ولسوالۍ کې هم د پام وړ پرمختگ وکړ، حکومتي ویاندانو وویل چې مجاهدینو له هغو زغروالو وسایطو او درنو وسلو څخه استفاده کړې چې د چهاردرې او دشت ارچي په فتوحاتو کې یې نیولې وې.

همدا اوس چې دا کرښې لیکم د دهیواد په ختیځ کې د کونړ مروره ولسوالۍ او په جنوب کې د هلمند نوزاد ولسوالي د مجاهدینو تر درنو بریدونو لاندې او حکومتي ځواکونه په کې محاصره دي چې په غالب احتمال به سقوط وکړي، له دغو سترو فتوحاتو څخه ښکاري چې په هیواد کې جهادي بهیر د فتحو او بریاوو یو نوي پړاو ته داخل شوی دی چې ورځ تر بلې زور اخلي.

رحمه الله

# ملا محمد عمر مجاهد

## خپل ولس اومسلمان ملت ته څه وکړل؟

کومه ورځ چېددې ليکنې دپوره کېدلو او مسئول مقام ته دوراستولو وه هغه ورځ تېره شوی خو ما عاجز پرې ايله نن پيل وکړ؛نه غفلت و، نه بی غمي وه او نه بل کار له دې زيات مهم و خو دا چې ليکنه دزمانې دهغه ستر شخصيت په اړه وه چې دکارنامو اتلوليوو او شاهکاريو ودرول شوي منارونه يې تراسمانه رسېږي نو په اړه يې ما په خپل کم استعداد؛کوچني زړه او کمزوري قلم دڅه ليکلو هيڅ جرأت نه شو کولای؛دا هيڅ مبالغه نه بلکه حقيقت دی چې زموږ مرتبه او درجه له هغه ډېره ټيټه ده؛ نو څمکه به داسمان لويوالی او لوړوالی څه معلوم کړای شي او څه به پرې نور پوه کړای شي؟

دکوم شخصيت سره مې چې مينه کول لوی عبادت گڼلو او پدې مينه نن هم وياړم او دخدای تعالی نه پرې دستر اجر تمه لرم دداسې شخصيت وفات او ابدي فراق زړه ته ورکوزول او دحفظه الله تعالی پرځای ورسره رحمه الله تعالی ليکل اسان کارندی؛دزړه د حال نه يوائې الله تعالی خبر دی؛ څه چې پرې تېرېږي بيان يې له توان نه وتلی دی ؛خوداچې په اړه يې يو څو ټکي ليکل هم دعشق غوښتنه ده نو پرځان يې فرض او داميرالمؤمنين رحمه الله قرض بولم نو مې ترې انکار هم ونه شو کړای ؛نن مې خپل مات قلم راخستی؛ دالله تعالی نه دسمو ټکو دليکلو توفيق غواړم او دا چې پرې داجر گټلو تمه لرم نو همدا کمزورې هديه داميرالمؤمنين رحمه الله تعالی سپيڅلې روح ته ډالۍ کوم.

هو! اميرالمؤمنين ! دا ډېره کوچنی ډالی ده ته ددېر څه حقدار وې او ستا موږ ډېر پوروړي يو

اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد! نن چې پراسلامي نړۍ مسلط حاکمان دسيکولرزم خونړي سېلاب لاهوکړيدي په ټولې نړۍ کې يوازې تاسې واست چې د منبر او محراب له ډگره راپورته شوۍ اوخدای داهمت درپه برخه کړچې ديومسلمان رهبر په صفت مو هم خپل نظام د خالصو اسلامي اصولو مطابق جوړ کړاوهم موسياست بېرته اسلامي کړ، په سياست او نظام کې مود سيکولريزم او نوروکفري نظرياتو مداخله رد کړه اونړۍ ته مو يو ځل بيادا ثابته کړه چې مسلمان که وغواړي هم په خپل شخصي ژوند کې مسلمان کېدی شي او هم له معاصرو کفري نظرياتو او

اصولو لیري خپل نظام اسلامي کولی شي.

ملا محمدعمر مجاهد!تاسې د یوه رښتیني مسلمان رهبر په حیث نه د کفري نړۍ له لویو ځواکونو نه وه وېرېدۍ ، نه له نوي نړیوال نظام اود ملګرو ملتونو د کفري قوانینو نه مرعوب شوۍ نه دنړۍ دسترو طاغوتونو سره په کوم کفري نظامي یا سیاسي تړون کې شامل شوۍ ، نه موغرب او یا شرق ته دځان نزدې کولواوخپل واک ته دطول ورکولو په مقصد په خپل نظام کې پردي معیارونه مراعت کړل، او نه موهم د چا سیاسي، اقتصادي او نظامي بندیزونو او تهدیدونو ته سرټیټ کړ.

داهرڅه دسادګۍ او د معاصرې نړۍ له سیاسي وضعیت او حالاتو نه دناخبرۍ له امله نه وولکه ځیني پردي پالي او لنډ فکره خلک چې وایي؛ حقیقت دا دی چې هغه ساده او ناخبره نه وو، بلکې هغه یو رښتینی مسلمان رهبر و چې ددین دلاربښوونو اودشریعت داصل مزاج نه خبر؛ د اسلام په حقیقي روحیه سمبال او یو کلک شعوري مسلمان و چې په هېڅ صورت ورته په اسلام او اسلامي سیاست کې پیوندکاري د منلوور نه وه.

هغه یو ژمن مسلمان و، او پر دې یې عقیده درلوده چې لکه څنګه چې د مسلمان دین او عقیده اسلامي کېدل ضروري دي همداسې باید د هغه سیاست او نظام هم اسلامي وي.

سره له دې چې زموږټولنه مذهبي ټولنه ده اودهراشغالګرنه دهېواد په دفاع اوازادۍ کې ددیني عالمانولویه ونډه ده خو دهېواد په سیاست دسیکولرزم دعملي تسلط له امله لادکمونستي رژیم نه وړاندې علماء کرام دنظام اوحکومت نه لری وو ؛په عملي سیاست کې هېڅ ونډه نه ورکول کېدله او د هېواد د سیاسي، عسکري او اجتماعي قیادت چارې له دین څخه ناخبرو او یا له دین څخه باغي اویاغي سیاستوالو،عیاشو، دین دښمنوجابرو بادشاهانو، په پردیو پورې تړلوفکري غلامانواو لیبرال فاشستانو په لاس کې نیولې وې.

دغو له دین څخه یاغي او پردي پالو حاکمانو په هېواد کې داسې نظام او قوانین رامنځته کړي ول چې د هغو په توسط یې زموږمسلمان ولس د ذلت، اختناق، سیاسي استبداد ، ټولنیزې بې عدالتۍاو اجتماعي فسادسره مخامخ کړ؛ له دې وېرې چې نظام اوخودساخته قوانین یې له زوال سره مخ نشي_ اود اسلام د حاکمیت مخه ونیول شي دعلماوو اوصالحو عوامو پرضد یې نا اعلان شوې پټه بې رحمه جګړه روانه وساتله اوتل یې دوۍ دتهدیدونو اوفشارونولاندې لرلو لپاره ټول وسائل په کار واچول چې په نتیجه کې یې علماء او د دین د حاکمیت لپاره کار کوونکي ټول ژمن مسلمانان له نظام او حاکمیته لرې اود سیاسي جریانونونه تجرید شول .

دا وضعیت نه یواځې پر افغانستان بلکې پر ټولې اسلامي نړۍ حاکم و او اسلامي سیاسي احزابو او جریانو نوددې وضعیت نه د ولسونو اوهېوادونو دویستلو لپاره کوښښونه هم کړیدي خوچې داکوښښونه د خالصو اسلامي انقلابي اقداماتو او جهادي ستراتېژۍ له لارې نه وونودپام وړ بریالیتوب پکې چاته نه و ورپه برخه شوی اوځیني خولا ددیموکراسۍ له بهیرونو سره په بېلابېلو شکلونویوځای شول اوځانونو ته په حکومتونواو پارلمانونوکې په چوکیوو پیداکولو راضي شول اومتأسفانه چې همدا یې کامیابي وګڼل .

خودلوی فراست مالک اودالله تعالی پرذات سترمتوکل ملا محمد عمر مجاهد داسې ونکړل ؛ د سیکولرزم ټول پر دین نه ولاړاصول او معیارونه یې ردکړل، اودشرعي لاربښوونواود فطرت دغوښتنوسره سم یې یې د نظام او سیاست د چارو واګي بېرته علماوو




مجاهدينو اودیندارو وگړو ته ور وسپارلې او نظام او ادارې له دين دښمنو عناصرو پاکې کړې.

په کومې ټولنې کې به چې خلکوويل :ملا په حکومت څه پوهېږي ؟ په هماغه ټولنې کې ملا محمدعمر مجاهد، ملااومجاهد صدراعظم ، رئيس الوزراء ،لوی درستيز، والي ، وزير، ولسوال ، امنيې قوماندان ، قاضي، څارنوال، ولسوال، سياستوال، ديپلومات، ليکوال، اديب او مبصر جوړ کړ چې له امله يې د ملا او ټولنې تر منځ پرې شوې رابطه بېرته داسې وصل کړه چې بېرته پر پرېکولو يې د نړۍ يوطاقت هم ونه توانېد که هر څو يې خپل ټول وسائل په کار واچول.

**دهمدې ټينگې رابطې په برکت ټول نړيوال کفرماتې وخوړه ؛ ملا اوطالب دنړيوال ښکېلاک پرضد جنگېږي اونه يواځې خپل ولس بلکې ټول امت يې ترشا ولاړدی نوهمداملامحمدعمرمجاهد دی چې په سياسي، فکري، او پوځي لحاظ د امريکااونورلويديځ په گټه يوقطبه شوې نړۍ يې بېرته داسې دوه قطبه کړه چې يو قطب يې اوس دټولې غربي ټلوالې اود سيکولر نظرياتو له خاوندانو جوړ دی ، او بل قطب يې خړپړمجاهد ،غريب ملا او د هغه فکر دی.**

دملا دې فکراوشاهکاريو په ټولې نړۍ کې داسې يوژمن مسلمان او مجاهد نسل او يوه سياسي او جهادي تيوري رامنځته کړه چې ټوله کفري نړۍ يې سخته ورخطا کړه، ستر پوځي ځواکونه يې وننگول، اواوس په داسې ځواک بدلېدونکی دی چې ټوله نړۍ به يې له مقابلې عاجزه وي.

د هغه له لاسه دا هر څه په تصادفي ډول نه دي تر سره شوي، بلکې د دې هر څه لپاره يې همداسې عزم درلود.

مسلمانانو له اوږدې مودې راهيسې د يوه واقعې او رښتيني مسلمان حاکم نمونه نه ده ليدلې له تېرې اوږدې زمانې راهيسې د خانداني موروثيت، يا د کودتاگانو، يا د پرديو لخوا په تحميلي شکل او يا هم د غربي ديموکراسۍ د انتخاباتو له لارې واک ته رسېدونکي د اسلامي نړۍ تقريبا ټول حاکمان دشرق ياغرب داسې فکري غلامان وو چې خپل سياست او اقتصادي نظامونه يې دپانگوال يااشتراکي نظامونوتابع گرځولي وو؛ دين ته يې هېڅ التزام نه درلودلو، اود مسلمانی تظاهريې هم يوازې دخپلو محکومو ولسونو دتېر ايستلو لپاره و.

په فکري لحاظ د اسلامي نړۍ دې سيکولرحاکمانوبه د خپلو گټو اودقدرتونودبقا او دوام لپاره هر کار روا باله ؛ شکل او صورت به يې هيڅ دمسلمان نه ښکارېدلواوپه عمل کې به هم دکفارونه کفرته زيات وفادارووااوپه تمامه معنی به د پرديو فرهنگونو تمثيلوونکي وو.

خود اوسنی زمانې د حکامو بر عکس ملا محمد عمر مجاهد د يوه رښتيني مسلمان حاکم نمونه و؛ د شکل او صورت په لحاظ له شريعت او

افغاني اصيل دود سره برابرحاکم و؛ هغه په فکري لحاظ پريوپردي نظام يا قطب پورې تړلی نه وبلکې دملت په منځ کې له مسجد او محرابه راپورته شوی متدين او متشرع شخص و؛ دشريعت نه خبر ،د دين په تقاضا او روحيه پوه اودشريعت نافذولوته ژمن رهبر و.

سره لدې چې اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد يومثالي څواکمن حاکم او يو قوي رهبر وخوهغه په خپل څواک هيڅکله هم دغروربښکارشوی نه واونه يې دنړۍ دديکتاتورانوپه څېرتولې پريکړې په يواځې ځان کولې هغه يومتواضع رهبراوحاکم و؛ هر وخت يې خپل تصاميم د شريعت له علماوو څخه د پوښتنې او له خپلو ملګرو سره د مشورې په نتيجه کې نيول، اودټولومهموپريکړو لپاره به يې په اوونۍ کې يوځل دهمدې مشرانومسؤولينو اوعلماءوسره مشوره درلوده.

ملا محمد عمر مجاهد داسلامي نړۍ د اوسنيو نورو حاکمانو او سياستمدارانو په څېر د معاصرغرب د فريب نه ړکې سياسي فلسفې اومکاروسياسي فيلسوفانوپر نظرياتو باورنه درلود چې همدا يې داسلامي فکر او د اسلامي سياست د خالصتوب رازو؛ د رسول الله صلی الله عليه وسلّم او د ابوبکرصديّق، فاروق اعظم، علي مرتضی ، عثمان ذوالنورين رضي الله تعالی عنهم اونورو اسلافو کړنلاره يې د عقيدې او سياسي تفکر اصل سرچينه وه او د هغوئ ساده خو پوخ او اصيل فکريې خپله تګلاره ګرځولې وه چې له همدې امله يې تر وروستۍ سلګۍ د شريعت التزام ته پرتولې دنيا اود د نيا د خلکو پر توصيو او فرمايشاتو ترجيح ورکړه.

اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد چې دطالبانو داسلامي تحريک په نوم دکوم حرکت بنسټ کېښود اوکابوتردوه لسيزو يې ددې حرکت اوپه افغانستان کې دقائم شوي اسلامي امارت قيادت اومشري وکړه دې حرکت دډېرې سترې ناهيلۍ په حالت کې ولس اومسلمان ملت ته هغه بې ساري لوی خدمت وکړچې چابه يې تصورهم نه شوکولای.

دتجاوزګرو روسانو په مقابل کې چې په شوي جهاد اوهجرت کې افغانانوسخت کړاوونه وګالل ؛سترې قربانئ يې ورکړې يو نيم مليون افغانان شهيدان شول او د افغانانو دمقدس جهاد او پکې د سترو قربانيو په نتيجه کې چې روسانو ماتې وخوړه نو دافغانانو او د نړۍ د ټولو مسلمانانو د هيلو سره سم دلته د عدل او امن نه ډ ک سوچه اسلامي نظام نافذېدونکی وخوله بده مرغه چې زموږ سرکښانو دې لويو قربانيوته ونه کتل ؛د جهاد اهداف يې په نظر کې ونه ساتل او هغه څه يې وکړل کوم چې دنړيوال کفر ارمان و ؛ د قدرت په سر د څو حريصو څېرو د خپلمنځي اختلافاتو اوپه نتيجه کې يې په پلازمېنې اودهېواد په ګوډ ګوډ کې درامنځته شويوجنګونو له امله نه يواځې دا چې دې نظام تحقق و نه موندلو بلکې دمسلمانانو قتل عام وشو ؛ کورونه يې لوټې لوټې شول؛ دکابليانو په شمول په سونو زره هېوادوال بيا په هېواد کې دننه اودهېوادنه بېرون هجرت کولوته اړشول اوپر دې غريب ولس د شر او فساد نه ډک يو داسی حالت راغلو چې دولتي نظم بيخي له منځه ولاړ ؛ پرهېواد طوائف الملوکي مسلطه شوه ؛ هر زورور د خپلی قبضې لاندې سيمې باچا شو ؛ د هرو دوه ښارونو تر منځ دسرکونوپه سرد غلو او لوټمارانو په سونو پاټکونه جوړشول ؛ افغان ولس د صحت او تعليم په شمول دژوند د ټولو اسانتياو نه بی برخې شو او د هيچاځان ، مال او عزت خوندي پاتې نه شو .

په افغانستان کې په خطرناکې خپلمنځي جګړې کې دجهادي ډلو داخته کېدو له امله د جهاد عظمت د

خلکوپه سترګو کې راکم شو؛ دې ستر،کامیاب اوتاریخي جهاد ته کمونستانو او نېشنلستانو د فساد خطاب وکړ؛ عام ذهنیت هم ترډېره حده له دوئ متاثر شو؛ اسلام ته ژمنه ټوله حلقه اوپه ځانګړي ډول مجاهدین په نړۍ کې د یوې ناکامۍ ډلې په حیث وپېژندل شوه.

په افغانستان کې دروسانو دماتې سره سم دخلکو یقین ته پرېوتې وه چې نړۍ کې ټولې تیورۍ ، فلسفې او ګروهې ماتې شوې ؛ پر نړۍ دحاکمیت وار د اسلام دی او ټوله انساني ټولنه به ژغورې.

خوله بده مرغه چې کله تنظیمونه خپلو کې سره ښکرپه ښکر شول نو د اسلامي نظام په نوم داسې نظام رامنځته شو چې خلکو په هر نظام شکر وویست.

دا حالت به د هرې ورځې په تېریدلو له بد نه بدتر کېدلو؛ افغانان داسې پړاو ته رسېدلي ول چې په تاریخي لحاظ ترې د یوې سوبې تمه لرل خو ډېره لرې وه په خپل منځ کې ترې دسولې ټول امېدونه هم له منځه تللي وو نوځکه دښمن فکر وکړ چې دا خلک ګوندې پراګنده شول او وحدت یې دتل لپاره له منځه ولاړ.

داهغه وخت وچې تر ټولو ستر ګواښ چې دافغانستان دتجزیې ګواښ و دښمنه نړۍ ورته سترګې په لار شوه او ولې به نه وه چې په جنګ کې ښکېلو ډلوکې داسې لویې ناولې ډېرې څېرې وې چې دهېواد ویش ته یې ښه په سپین سترګۍ خوشالي ښکاره کوله اوپه زړونو کې یې دا ګوړی اوشکرې ماتولې چې په واړه مساحت کې خو د ده په څېربې سواده شیان چې څوک یې په سړوکې هم نه شمېرې، وزیر کېدای شي.

هغه نړۍ چې افغانانو د روسانو د ستر شر نه ژغورلی وه پکې یوهېواد هم داسی نه و چې پدې حالت کې یې افغانانو ته لاس ورکړی وای او یایې ددې بد حالت نه د دوئ د راویستلو لپاره کوچنی اقدام یا فکر کړی وای.

داچې دستر ګټل شوي جهاد نتایج اوثمرات ضایع کېدل نوپه دې حالت دنړۍ مخلص مسلمانان سخت زورېدل ځکه چې نه یواځې افغانانو ته بلکې دنړۍ ټولو مسلمانانو ته د افغان جهاد د نتایجو ګټل او ساتل مهم وو ؛ کله چې د روسانو له ماتې وروسته ځینې رهبران خپلو کې سره ونښتل د نړۍ لوی لوی علماء، دعات او خیرخواهان د دوئ د روغې جوړې لپاره لاس په کار شول ؛ پدې لارکې هغوئ ډېرتکالیف وګالل خوپه جنګ کې اخته اړخونوجنګ ونه درولو اونه پکې دجهاد دثمراتو اودامت داجتماعي ستروګټو دساتنې څه فکر پیدا شو.

له هر لورې ناهیلي وه او دې غریب ولس هیڅوک داسی نه لیدلو چې دامېد سترګې یې وراړولی وای اونه یې یو فیصد دا تمه لرله چې ګینې د دې ستر ناورین نه به یوه ورځ راووځي اویابه پدې هېوادکې امن ، ثبات ، دولتي نظم اونظام بیاوجود ومومي له هر لوري ناهیلي وه

امیرالمؤمنین دسترې نا هیلۍ نه په ډک همدې حالت کې د خپلو څو ملګرو سره یوځای ددې ستر شر او فساد پر ضد په یوکلي کې توره په لاس میدان ته راووت؛ هغه چې د ستر فراست نه برخمن ؛ د هېواد او ملت لوی غمخور، ربښتیني مدبر، د همت غر او د جرأت ، حریت او قربانۍ سمبول و کوچنۍ ډلې ته یې الله تعالی په لږې مودې کې په قندهارکې ستره کامیابي ور په برخه کړه نو د افغانستان ټول حق پالونکي علماء او د دیني مدرسو طالبان ورسره یو ځای شول ؛ د طالبانو تحریک ترې جوړ شو چې ټول مجاهد ملت یې ترشا ودرېدلو اوهر شوم پلان یې پوچ کړ؛ هره بده حیله یې په شا وتمبوله ؛هر بد نظر یې له بېخه وکاږه اوهره ناکاره اراده یې په نطفې کې خنثی کړه .

نو له شکه وتې خبره ده چې هغه په ټولې نړۍ کې رښتونې جهادي روحیه ؛داسلامي سیاست بهرني اودنني حقیقي شکل او اصل اسلامي حکمراني بیا راوژوندۍ کړه نوهغه ددې حقدار دی چې دعملي جهاد عملي اسلامي سیاست اوحقیقي اسلامي حاکمیت ددې زمانې مجدد وګڼل شي.

هغه په جهادي تنظیمونوکې ویشل شوي ټول مجاهدین په یوصف کې ودرول اونه بدلېدونکي اصول یې ورته وضع کړل ؛ هېواد کې دروسانوپرضد ترسره شوي ځوارلس کلن جهاد نه وروسته دقومیت ،سمت او ژبي په نامه بل شوي اورونه یې مړه کړل او ټول افغانان، دهرقوم سره یې چې تړاو و اوپه هرې ژبې یې چې خبرې کولې ؛ دشمال وو،که دجنوب ،دختیځ وو ،که دلویدیځ، داسلامي امارت دیوبیرغ لاندې سره راټول او دپردیو په اشارو دبغض ، حسد او دښمنیوو بنسټ یې دتل لپاره له منځه یوړو چې دهمدې واحد صف دوحدت په برکت مسلمانان سرلوړي شول ؛ جهاد کامیاب شواودنړۍ دسترو زبرځواکونو نه جوړ لوی صلیبي اتحاد دشکست تر سرحده ورسېد اوپه واحد صف کې ولاړ همدامجاهدین نن دټولې نړۍ دمسلمانانو قائدین شول.

**پرهېواد دژبني ، سمتي اوقومي تعصباتوراخپرې شوي ټولې تورې وریځې دملي اوديني وحدت پاک نسیم له دوشنبې اوتهرانه هم پسې ورواړولې ؛ دافغانستان د ویش هره دسیسه یې له منځه یوړه او قومي تړون یې دسپېڅلې عقیدې په داسي تار سره وتاړه چې هیڅکله شلېدونکی اوخلاصېدونکې ندی.**

که دښمنانو دافغانانو ددې ملي وحدت نه پرون انکار کاوه آیا نن یې کولای شي؟ تاسې وګورئ چې په شمال کې مجاهدین د اسلامي امارت په اطاعت کې ددښمن پرضدپه کوم احساس جنګېږي او په کومه رشته سره تړلي دي ؟

دقدرت اوډالرو وږوچې پرون بیا د تجزیې سندرې پیل کړې اوپېدې دلیل د اشغال د دوام خبرې کېدلې څنګه به یې تکراروي چې ملت په اتفاق دتجزیه کارو ټولې دسیسې عملاً ورشنډې کړې او د هېواد په لر وبر کې دهرې ژبې ،هرې سیمې اوهرقوم سره تړاولرونکي مجاهدین سره په یوه مزي او واحد اطاعت تړلي د اسلامي امارت تراطاعت لاندې ددښمن پرضد په پوره مېړاني جنګېږي اولویې لویې سیمې غونډې غونډې ولسوالۍ ددښمن دقبضې نه ازادوي اوستر بیسونه اوفوځې مرکزونه ترې نیسي .

افغانانویواځې هغه وخت خپل تاریخي ارزښت اومقام ساتلای چې کله یې دخپل ملي وحدت مظاهره کړیده او لاسونه یې سره ورکړي دي ؛ اتفاق اواتحاد چې نه وي بیا خو تاریخ د پول پرانانو ،جنګ سالارانواو پاټک سالارانو کیسې لیکي.

دتنظیمي جګړو ، رقص مرده اودخپلوعفتونودساتلو په موخه دکابل ښار دمکرویانو ددریمو او څلورمو پوړونو نه لاندې ځمکې ته دخپلو ځانونو راغورځونکو عفیفوخویندو د ناموسونولوټېدلو هغه داستانونه خوندي کوي چې د کمزوري زړه څښتن یې لوستلای هم نه شي . نوجاه طلبو ،دډالرو مینانوا ،دقدرت وږو او بې ارزښته خلکو چې په کوم وخت کې د دې مسلمان ملت د اسلامي وروروليي احساس دځپلو ؛ دتعصباتو خپرولو ، دملت دوېشلواود هېواد دتجزیه کولوله لارې زموږتاریخ کې توربابونه ورزیاتول ملا محمد عمرمجاهد په پوره جرأت اومتانت توره په لاس دهمدې بې وژدانوپه مقابل کې میدان ته راووت ؛ افغاني تاریخ یې نه نېړېدو ته پرېښود او نه یې خرابېدو ته نوداپرځای خبره ده چې امیرالمؤمنین د

جهاد اوافغاني تاريخ د عظمتونو وارث و .

حقيقت د ادی که د الله تعالی فضل او احسان او بيا د ملا محمد عمر مجاهد پاځون نه وای نو نن به نه واحد افغانستان وای، نه به دلته دغه ډول مجاهدين ول، نه به امريکا او ناټو ماتې خوړلې وه، نه به مو ولس د آزادۍ دغه ډول روحيه درلوده، او نه به مو په نړۍ کې د جهاد او سر لوړۍ بيرغ رپيدلو؛ که ملا محمد عمر مجاهد د امريکا او د هغې د ملګرو په خلاف د جهاد بيرغ نه وای پورته کړی،نو دتل لپاره به د کمونستانو پيغور راپر غاړه وای.

ملا محمد عمر مجاهد رښتونی مسلمان متوکل حاکم اودمحمود غزنوي حقيقي وارث ووچې په باميانو کې يې دبودا دمجسمې په نړولو دشرک بتکدې اودبهرنيانو دفحاشۍ اډې په ډېر جرأت له منځه يوړې؛ ددې دپاتي کېدو لپاره يې نه دچا پيسې قبولې کړي او نه دمسلمانانودا زړور مشرـ دکوم ښکيلاکي ملک له تهديدنه وويرېد.

هغه په فکري لحاظ په اسلامي معنی د امت پر وحدت باور درلود، او د خپل توان تر حده يې د امت د عملي يو کولو هڅه وکړه ؛ هغه د نړۍ ډېرو جهادي ډلو او لويو شخصيتونو ته د خپل نظام په غېږ کې ځای ورکړ، هماغه دغريبۍ په شپو ورځو کې يې هغوئ ته داړتياوړوسائل او د هغوئ د مهاجرينو لپار د عزتمن ژوند امکانات برابر کړل، پدې ډګر کې هغه ديو ملامته کونکي پروا ونه ساتله او پدې اړه يې د شرعي حکم او مسؤوليت په مقابل کې د هېچا خاطر داري ونه کړه، که هر څومره ورته دا کار په درانه قيمت هم تمام شو.

هغه به دمسلمانانو دوحدت لپاره نورهم ډېرڅه کړي وای خو که نظام يې باقي پاتې شوی وای ؛ د نورې نړۍ مخلص مسلمانان دهغه دهمدې ارادونه خبر ووځکه خوېې خپل امير او رهبر ګاڼه.

هغه رښتيا چې دمسلمانانو قدردان حاکم و ؛ نړۍ ته يې وښودله چې يومسلمان څومره دقدر وړ دی ؟! هغه ديوه عرب مسلمان مجاهد شيخ اسامه بن لادن رحمه الله تعالی څخه بشپړه ننګه وکړه اوپدې اړه يې دنړۍ يوډول فشارته هم سرټيټ نکړ ؛ امريکا يي فرعونيت ته يې غوڅ منفي ځواب ورکړ ؛ دخپلې واکمنۍ نه تېرشو خوداسلام داصولونه تېر نه شو .

هغه چې دغربي زبرځواکونونه ،نه وېرېدلو ، پرمسلمانانو دننګې خبره چې راغله دشرقي نېږدې زبرځواک روسي يې هم څه پروا ونه ساتله اوکله چې چيچين دمجاهدينو په لاس فتحه شو نوپه يوازې ځان يې دچيچين اسلامي حکومت په رسميت وپيژندلو ؛ داهغه تاريخ جوړونکي کارنامه وه چې پدې سره يې دقفقاز دمسلمانانو ترځنګ دټولې سيمې مسلمانانو کې جهادي روحيات لوړ اوپکې يې دجهادي پاځون او خپلواکۍ اخستلو ساه پوه کړه .

له دې هيڅوک انکار نشي کولای چې د جهاداوافغاني تاريخ دعظمت وارث چې کله دخپلوملګروطالبانو اوملايانوسره يوځای توره پورته کړه او ميدان ته راووت نو ايله چمن ماليار ومونډ ؛ پر خزان وهلو څېرو دبهارتازګي خپره شوه ؛ هيلو بياغوټۍ ونيوې ؛ دارمانونوغوټۍ ګل شوې ؛ دجهاد نوم اومقام بيا احيا شو ؛ دبلالي اذان انګازو افقونه بيا رابيدار کړل ؛ دممبراومحراب آواز بيا خپل اثرښکاره کړ ؛ ددينې لارښوونو پيروي عامه شوه ؛ داسلامي شعايروقدرداني پيل شوه ؛د اسلام ، ملت ،خاورې اوناموس نه ددفاع په خاطر قربان شويو سرونو قدر پيداکړ ؛د اسلام دحاکميت په هدف له نړۍ کوچېدليو روحونو ارزښت ومونډ او هغو سرونو قيمت وګاڼه

**چې د شریعت د نفاذ په کوښښ له تنو جداشوي ول .**

په افغانستان کې اسلامي نظام راتلل چې دټول مسلمان ملت ارمان وحاکم یې کړ او نړۍ ته یې دا وښودله چې موږ چې دکوم نظام راوستلو لپاره قرباني ورکړیده په نفاذ یې قادر یو اوپدې لارکې دچا خنډ کېدل نه منو .

هو ! د سترو قربانیوو په نتیجه کې دتېرجهاد ثمراتو تحقق ومونډلو اودې بې چاره ملت ته داسی د امن او سوکالۍ نه یوک مثالي نظام ور په برخه شو چې په ټول عمر کې به افغانانو د خپل سر،مال او عزت د خوندیتوب داسې احساس نه وکړی لکه پدې نظام کې یې چې وکړ.

داسمه ده چې موږ له بل هر ولس نه زیات او ستر اتلان لرو او د هر یو اتلولي په خپل ذات کې ډېره ستره ده خو که د انصاف په نظر وکتل شي نو د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی دا اتلولي به زموږ په تاریخ کې بې سارې وي.

اسلام او مسلمانانو دله منځه وړلو په موخه د امریکا په مشرۍ کې رامنځته شوی لوی صلیبي اتحاد دانساني تاریخ هغه ترټولوستر اتحاد و چې د نړۍ بل یوطاقت یې هم مقابلې ته د راوتلو جرأت نه شوکولای او ټول ورته تسلیم وو ؛ ددې اتحاد مقابلې ته راوتل خو ډېره لرې خبره وه هغه څوک چې اوس بریتونه تاووي ددې اتحاد دنوم په اورېدوبه یې لینګي رپېدل خو ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله ددې ستر اتحاد په مقابل کې د استقامت د غر په څېر میدان کې ودرېد او د شرمونکې ماتې سره ددې اتحاد د مخامخ کولو پورې یې ددې پیل شوي جهاد قیادت وکړ چې دا یقینا د نړۍ په سطحه بی ساري اتلولي ده .

دنړۍ په تاریخ کې ترټولو لوی اوپه مادي اوعسکري وسایلوترټولو سمبال اتحاد چې دوسایلو په لحاظ زموږدکمزوراودشمېر په لحاظ زموږ دلږو لښکروپه مقابل کې ماتې خوري دازموږلپاره بې حده لوی افتخاردی ؛ که څوک له دې افتخارنه انکارکوي ،یایې دبې ارزښته کولوهڅې کوي اویا هم خپل افتخارپردی کوي دابه دخپل تاریخ سره نه جبرانېدونکی داسی جفا وي چې ملت به یې هیڅکله هم ونه ښښي .

ددې فاتح لښکرسرلښکرچې دومره لوی شخصیت دی چې دټولې اسلامي نړۍ حقاني علماء ،پوهان ،جهادي قائدین ، عام مجاهدین اوټول مخلص مسلمانان یې خپل اتل بولي ؛دیانت ، عظمت ، شجاعت ، متانت ،بصیرت اوکرامت ته یې سلام کوي او دعقیدت نه ډک خوراعالي الفاظ یې روح ته ډالۍ کوي نوهمدامو ددې وخت دی چې په کوردننه ټولې ورې خبرې شاته کړو اوڅرنګه یې چې اسلامي نړۍ غواړي همداسې یې له هېواده وباسو اونړیوال یې کړو .

هو ! هغه نړیوال دی اوتاریخونه به یې نړیوال بولي ؛دکوم مقاومت په نتیجه کې چې امریکا اومتحدین یې مات اوټوله نړۍ یې له شرنه محفوظه شوه ، ددې مقاومت قیادت چې دملا محمدعمرمجاهد په غاړه و نو هغه یقیناً ددې حقداردی چې یاده ټوله نړۍ یې خپل اتل وبولي.

ستراحمدشاه بابا ،محمودغزنوي شهاب الدین غوري اومیرویس نیکه افغانان وو خو ټوله نړۍ منې چې تاریخي حیثیت یې نړیوال و ، دنړۍ په تاریخ کې قدرمن امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی هم داستقامت ، حق پالنې ،خداپرستۍ، زړوتیا ،دیانت دارۍ ، په وعدو دوفا ، په خپلې حقې خبرې دټیګ ودرېدلو، امانت دارۍ ، شریعت پالنې په خپل ولس دزړه سوي اوترحم ، دټول مسلمان ملت سره دخواخوږۍ ، بشر دوستۍ ، ددښمن په مقابل کې دمتین عزم لرلو اویواځې دالله تعالی پرذات دتوکل داسې زرین بابونه جوړاوراتلونکې تاریخ کې یې ځانته

دومره لوړ ځای پریښود ،چې دنړۍ په سطحه دسترومسلمانو اتلانو غونډې به یې مسلمان ولسونه ترقیامته په تاریخ جوړونکو کارنامو ویاړي .

داکارنامې دومره لویې اوزیاتې دي چې دا اندیښنه شته چې په تاریخ کې ثبت شوي زیاتره شیان شایدراتلونکي نسلونه مبالغه یاخیالي کیسې وګڼي ځکه چې دادومره ډیرې کارنامې اودا دومره ډیرې شاهکارۍ اواتلولۍ عادةً په یوانسان کې خلکو ته ناشوني ښکاري ،خوهغه چې عام انسان نه و؛ څښتن تعالی لوی عظمت اوکرامت ورکړی و واقعیت به همدا وي چې دادومره ښیګڼې ،اتلولۍ اوشاهکارۍ دهمده په وجود کې نغښتې او دهمده په لاس ترسره کړې وې .

نومحترمو افغان مؤمنو لیکوالانو ،څیړونکو ،ادیبانو د اسلامي فکر او د جهاد د فکري او فرهنګي سنګر ساتونکو اوعاموسلمانانو! راځۍ چې دسمتي ، قومي ،تنظیمي ،ژبنیزو اونوروتعصباتوهنداري له سترګو لرې کړو ؛دملا محمد عمرمجاهدرحمه الله تعالی دشخصیت په اړه دانصاف نه کارواخلو؛ د دې عظیم انسان د ژوند د بېلا بېلو اړخونو په راسپړلو او پر اسلامي فکر او سیاست د هغه د تأثیر په برجسته کولو خپل فرهنګي اوتاریخي مسئولیت اداکړو او د دې لوی شخصیت تاریخ مخکې له هغې تدوین او توثیق کړو چې د غربي اسلام دښمنوادارو، اشخا صواودکفر دغلامانوله لوري په مسخ شوې او تحریف شوې شکل راتلونکو نسلونو ته وړاندې شي.

دسترامیرالمؤمنین وفات یقیناً چې ډېره ستره حادثه او ویرجنه پېښه ده خو ددې طبعي ستر غم سره د اطمینان نه ډک او دمعنوي خوښۍداخبره مل ده چې امیرالمؤمنین رحمه الله تعالی له نړۍ سترګې پټې کړې خو د صلیبي اتحاد له لورې د هېواد د اشغال نه وړاندې او د اشغال نه پس یې دښمن ته دیوې کوچنۍ لمحې لپاره هم سرټیټ نکړاو نه یې په خپل عمر کومه داسې کوچنۍ خبره یا حرکت وکړ چې د افغانانو پرتاریخ تورټکی شي بلکې هره خبره او هره کړنه یې تاریخ جوړونکې وه .

کفري نړۍ خو کفري ده پراسلامي نړۍ مسلط کابوټول حاکمان چې تاریخ شرمونکي دي نو دامیر المؤمنین دهمدې تاریخ جوړونکی شخصیت سره دنړۍ نه تلل دمسلمان ملت لپاره ډېره دخوښۍ اوافتخار وړ خبره ده .

دامیرالمؤمنین رحمه الله په اړه ددښمن ناکامي هم دمجاهد ولس او ټول مسلمان ملت لپاره دډېر ستر اطمینان خبره ده.

هو ! هغه چې د هېواد نه د یوې ورځې لپاره هم بېرون ونه وتلو خو بیا یې هم داخلي او خارجي دښمن سره له ټولو کوښښونو په ژوندې نیولو یا وژلو ونه توانېد ددښمن دا ناکامي او دخپل امیر په اړه ددې سترغم نه دمسلمانانو بچ کېدل د ټولو مسلمانانو لپاره د ډېره دخوښۍ خبره ده .

حقیقت دادی چې مسلمانانوبه دهغه لپاره داوږد ژوند دغوښتلونه وړاندې د دښمن نه دحفاظت دعاګانې کولې ؛ ددښمن پرلاس دهغه شهادت یایې ژوندې نیول کېدل دمسلمان ملت لپاره بیخي دزغم نه وتلې خبره وه چې دملت ټول تشویش هم په همدې اړه و نوټول ملت چې پروفات سخت غمجن دی ترڅنګ یې ددښمن نه په حفاظت ټول ډېرخوښ وو اوزما په شمول ټولو دحال په ژبه ویل :

ښه دی چې وار دګلو تېرشو
مدام به یې غم درژېدو راسره ونه

# د کندز تاریخي

## او ویاړمنې فتحې ته کتنه

أبوعابد

کندز دافغانستان په شمال کې موقعیت لري چې ختیځ ته یې تخار ، جنوب ته بغلان ، لویدیځ ته بلخ او شمال ته یې دګاونډي هیواد تاجکستان حدود پراته دي ، کندز ولایت چې ۸۰۴۰ مربع کیلومتره مساحت لري نفوس یې دوروستیو شمیرنو له مخې تر یو ملیون زیات ښودل شوی چې څه باندې دوه لکه وګړي یې په مرکزي ښار کې اوسیږي .

کندز ولایت په مرکزي ښار سربیره د امام صاحب، چاردرې ، قلعه زال ، علي اباد ، خان اباد او دشت ارچي په نومونو شپږ ولسوالی لري ، دکندز اوسیدونکي پښتانه ، تاجک ، ازبک ، ترکمن ، ایماق او هزاره افغانان دي .

کندز ولایت دهندوکش دنورو شمالي سیمو غوندې یو زرخیزه او زراعتي سیمه ده ، چې تر ۷۰ فیصده ډیر خلک یې په زراعت بوخت دي ، غنم ، وریجې ، پنبه او ختکي دکندز دولایت مهم زراعتي تولیدات بلل کیږي ، چې دهیواد په سطحه له ښه شهرت څخه برخمن دي ، کندز پخوا دغوړیو او دپنبې دحلاجۍ فابریکې هم درلودې ، دغه راز په دې ولایت کې دغالیو کاروبار هم ښه نوم لري.

**د کندز مرکزي ښار دمجاهدینو په واک کې**

دکندز مرکز ي ښار چې دافغانستان په شمال کې تر مزارشریف وروسته دوهم ستر ښار بلل کیږي او دافغانستان په سطحه شپږم تر ټولو ستر ښار دی. دغه راز د شمال ختیځ افغانستان دروازه او مهم تجارتي او د دښمن سوق الجیشي- مرکز دی د روان هجري شمسي- کال د میزان د میاشتې په شپږمه نیټه د اسلامي امارت مجاهدینو فتحه کړ.

مجاهدینو د دوشنبې په سهار وختي د میزان په شپږمه د کندز په ښار له څو اړخونو بریدونه پیل کړل،د رسنیزو راپورونو او عیني شاهدانو د وینا له مخې د مجاهدینو پرمختګ ډیر منظم او سنجول شوی و، د برق آسا پیشرفت په څای یې قدم په قدم پرمختګ کاوو، د ورځې په نیمایي کې مجاهدینو یوه شیبه خپل پرمختګ ورو کړ، دولتي قواوو او د کندز چارواکو د طالبانو دا توقف خپله لویه بریا وبلله او اعلان یې کره چې طالبان یې د کندز له ښاره تمبولي وي، خو وروسته معلومه شوه چې د طالبانو دغه توقف تاکتیکي و، شاید د اکمالاتو ، دمې اخیستلو یا بل هدف لپاره شوی و، ماسپښین دری بجې طالبانو یوځل بیا په دولتي قواوو ناڅاپي تندریز برید وکړ، د ښار امنیتي کلابند یې مات کړ اود کندز واټونو ته ننوتل، د ملکي روغتون، کرنې او مالداري ریاست او ګڼو نورو دولتي اداراتو په شمول یې د کندز یو شمیر مهم دفاتر ونیول، له همدې شیبې د کندز په ښار کې کوڅه په کوڅه جګړه او تصفیه پیل شوه، چې دتر قضاء ماښام طالبانو د محاکمو، د کندز محبس ، امنیه قوماندانی ، ولایت مقام، د ملي امنیت

ریاست او نورو دولتي دوائرو په شمول نړدې ټول ادارات ونیول شول او دولتي ځواکونه یې د ښار بـه بالاحصار او هوایي ډګرکې کلابند کړل چې وروسته پـه بالاحصار کـې کلابند عسکر هم ټول تسلیم او خپلې وسلې یـې مجاهـدینو ته وسپارلې.

## د کندز له عملیاتو مجاهدینو څه ترلاسه کړل؟

د کندز له عملیاتو سره هم مهال مجاهـدینو پـه ټـول شـمال ختـیځ افغانسـتان او ځینـو مرکـزي ولایـاتو کـې عملیات پیل کړل دغـه راز یـې پـه کنـدز کـې هـم ډیـرې بریاوې او غنائم د ځان کړل د کندز لـه فتحـې د مجاهـدینو لاسته راوړنې په لاندې ډول را خلاصه کولای شو.

۱ ــ د کندز مرکزي زندان چې سلګونه تنـه مجاهـدین او یا د جهاد په نوم نیـول شـوي مظلـوم اشـخاص پـه کـې بندیان و د دې عملیاتو یو مهم هدف و لله الحمد د عملیاتو په لومړۍ ورځ دغه زندان د مجاهدینو تر واک لاندې راغـی او سلګونه تنه محبوسو مجاهدینو ته نجات ورکړل شو.

۲ ــ کندز چې د شمالي او شمال ختیځو ولایاتو لپاره ددښـمن یـو مهـم سـوق الجیشي، او د قومنـدې مرکـز بلـل کیږي،مجاهدینو وکړای شول چې ددې مرکز تر برید لانـدې نیولو او مشغولولو سره د کندز ، بغلان، تخار او بدخشـان پـه ولایاتو کې پراخې سیمې په ډیـرو کمـو تلفـاتو او معمـولي عملیاتو سره فتحه او ددښمن له شتون څخه پاکې کړي، په دې لړ کې په بغلان کې د تالـه وبرفـک ولسـوالي، د مرکـزي بغلان او پلخمري په مربوطاتو کې لسـګونه کـلي،د تخـار د اشکمش، ینګي کلا او خواجه غـار ولسـوالۍ ، د بدخشـان د وردوج او بهـارک ولسـوالۍ او خپلـه پـه کنـدز کـې د امـام صاحب ، قلعه زال او چـاردرې ولسـوالۍ مکملـې او د علـي اباد ولسوالۍ ډیرې سیمې د ددریو ورځـو پـه جریـان کـې د مجاهدینو لاس ته ولوېدې چې پـه دې ټولـو ولسـوالیو کـې لسګونه پوځي موټر، سلګونه میلې سپکې او درنې وسـلې او لوی مقدار مهمات هم مجاهدینو ته پـه لاس ورغلـل چـې د فتحو دغسې مسلسل بهیر پخوا نه و لیدل شوی.

۳ ــ د کندز ښار په عملیاتو کـې مجاهـدینو سـلګونه عــرادې مختلــف پــوځي وســایط، ټانګونــه ، توغنــدي ویشتونکي، په ټنونو د سپکو او درنو وسلو مهمات او په دې سربیره د مـلي امنیـت د ریاسـت او نـورو امنیتـي ادارو د اسنادو ارشیفونه او نور ډیر غنائم ترلاسه کړي دي، چې پـه باور سره ویلی شو چې ددې عملیاتو لاسته راوړنـې بـه پـه راتلونکي کې د مجاهدینو په ګټـه د نظـامي وضـعیت پـه تغیر کې مهم رول اداء کړي. ان شاءالله تعالی

په کنـدز او ټـول شـمال ختـیځ افغانسـتان کـې لـوړ فتوحات مجاهدینو په ډیرو کمـو او تقریبـا د نشـت برابـر ځاني تلفاتو سره ترلاسه کړل،چې د عملیاتو د دقیق پلان په برکت په دې ټولو جګړو کې دملي تلفاتو کچه هم ډیره ټیټه وه.

## د کندز جګړې کوم حقائق روښانه کړل؟

هغه حقائق چې د کندز له څـو ورځنـۍ معرکـې څخـه راښکاره شول په لاندې ډول یې خلاصه کولای شو.

۱ــــ طالبان یوه کمزورې یا ګریزي چریکي ډلګۍ نه بلکې یو منظم او د حکومت په وړاندې موازي جنګي صـف دی، چې کولای شي د هیواد شپږم لوی ښار په ظرف د څـو ساعتونو کې فتحه کړي.

۲ــ دولتي ځواکونـه تـر اټکـل زیـات کمـزوري ، بـې روحیې او تښتیدونکي دي، چې د پایدار مقاومت او موضع ګیرۍ تاب او تجربه نلري بلکې یو معمولي تعرض یې هـم په تیښته مجبورولای شي.

۳ــــ د کندز پیښې ثابته کړه چې د اسلامي امـارت د کلیو غوندې په ښارونو کې هـم پـراخ ملاتـړ لـه ځـان سره لري، د کندز عامو ښاریانو د طالبانو درونـد اسـتقبال وکـړ ، هغوی یې په غیږ کې ونیول او په خندانو څیرو یـې ورسره سیلفي انځورونه واخیستل .

۴ــــ دا خـبره ثابتـه شـوه چـې طالبـان د پخوانیـو تنظیمي مجاهدینو غوندې څولاسه او خپلسري نه دي چـې

ښارونه له سقوط وروسته د غنیمت په نوم لوټ او تالان کړي، طالبانو نه یوازې د ښار امنیت او شتمنۍ وساتلې بلکې د هغو حکومتي فرصت طلبو مخه یې هم ونیوله چې غوښتل یې له ګډودۍ په استفاده عامه شتمنۍ لوټ کړي.

۵ ـــ د کندز جګړه د مجاهدینو د ښاري جګړې لومړۍ تجربه وه دې برېیا ثابته کړه چې مجاهدین لکه څنګه چې په کلیو، غرونو او دښتونو کې د پارتیزاني او چریکي جګړې پخه تجربه لري او دښمن ته په کې شکست ورکولای شي د ښاریزې کوڅه په کوڅه جګړې په میدان کې هم بریالۍ طرحې پیاده کولای او خپل پوځي اهداف په بریا سره د ځان کولای شي، د کندز جګړې د ښارونو د فتحه کولو په چاره کې د مجاهدینو ورتیا ثابته کړه او دا د هغه اجیر حکومت لپاره چې حاکمیت یې یوازې په ښارونو پورې منحصر دی جدي خطر بلل کیدای شي.

٦ـــ په کندز کې چې کله د داخلي عسکرو ځوابي عملیات پرلپسې ناکام شول، نو امریکایي ځواکونو او الوتکو په ښار درونډ برید وکړ، امریکایي پوځیان د کندز ښار په مختلفو ساحو کې پیاده شول . دې پیښې وښودل چې د اوباما لخوا د افغان جګړې د پای اعلان هسې یوه غولوونکې ادعاء وه چې هیڅ حقیقت نلري، امریکایان اوس هم د پخوا په شان جنګي اشغالګر او د افغانستان په ځمکه او هوا د حاکمیت متکبرانه سوچ او اراده لري که ددوی دغه اشغال ځوک وننګوي دوی په ټول قوت سره میدان ته راوځي او خپل ټول پوځي زور کاروي.

هغه کسان چې دا ډیره موده یې تبلیغوله چې امریکایان او نور اشغالګر کفار له افغانستانه وتلي،جنګ بین الافغاني دی او طالبان باید پرته له قید او شرطه اوربند وکړي دغه اوسنۍ د کندز پیښې ته باید ژور ه توجه او پام وکړي تر څو وپوهیږي چې دا هیواد لاهم اشغال او د کفارو تر عملي پوځي تهدید لاندې دی. دلته لا هم امریکایي یرغلګر شته چې د جګړې اصلي لوری دي او د اړتیا په وخت میدان ته کیږي.

# د برې زیرې

**سید احسان الله الهام**

په نخا مې بیا احساس دی
د حقبینو بیا بر لاس دی

هر خناس اجل نیولی
اسویلیو دی سوځلی

سپین کاروان پر مخ روان دی
تیاره ده شین آسمان دی

د حیرت په تال کې ښورم
قرباني زلمو ته ګورم

لکه غشي چې را اوري
په پردیو زلمي ستوري

داسي ښکاري شپه ډوبیږي
ډوبه ورځ بیرته راخیږي

د بري زیری به واوري
منتظر اوسه الهام

# مولوي عبد الهادي اخندزاده

## ژوند او خدمتونو ته کتنه

بشیر همدرد

انسان دنیا ته د دایمي ژوندون لپاره نه بلکې تـرې دژر کوچ کولو لپاره راغلی! الله(جل جلاله) هرساکښ (متنفس) ته د دنیانه دکوچ کولو او تلو نیټه ټاکلې ده، که څوک خوښ وي اوکه ناخوښ هغه به خامخا دالله تعالی دحکم [کل شیٍٔ هالکٌ الا وجهه] په وړاندې سرټیټوي او له زړه څخه به یې مني، چې دالله له ذات نه سیوا د بل چا لپاره دوام اوبقا نشته. او هر ژوندی به خامخا د مرګ پیاله په سر اړوي.

په دې باب هردعقل او شعورڅښتن شک یا تردد نلري او هرڅوک مرګ د حقیقت په توګه مني.

خو دمراتبو له پلوه دانسانانو مرګونه له یوبل سره توپیرلري، هغسې داسې چې دځینو په مړینه یا وفات ایله یوه کورنۍ یا یو کلی دوېر په ټغر کیني اودځینو په رحلت بیا یوه بسته سیمه یو ولایت او یو هېواد د غم په ټغر کیني!دا هغه دکمال اولوړو اخلاقو څښتنان وي، چې ورته الله تعالی ګڼ علمي او عملي صفات ورکړي وي، دهغوی ژوند د نورو په سرسیوری او په تیارو کې ورته درڼا مشال وي. له دې وجې دداسې خلکو په مړینه نه یواځې دهغوی دخپلوانو سترګې اوښلنې او لمدې وي بلکې سوونه او زرګونه نور خلک یې هم په بیلتون له خپلو سترګو اوښکې تویوي،دداسې انسانانو په مړینه ګڼ علمي او ادبي مجلسونه بې رنګه او بیخونده پاته شي او له امله یې د سلګونو او زرګونو خلکو زړو ته ټکان او جټکې ورسي،هوا د دغسې بختورو انسانانو شتون د هرې ټولنې او جامعې دننه دالهي رحمت په معنی دی او رحلت یې دټولنې او جامعې لپاره یو نه جبیره کیدونکی زیان او تاوان دی.

دعربي دا مشهوره مقوله: [موت العالم- موت العالم] شاید همدا معنیویت ولري چې دعالم مرګ د نړۍ مرګ دی! او تجربو ښودلې چې دهر وړاندیني په رحلت رامنځته شوې تشه هیڅ وروستني نده ډکه کړې.

په دې لړ کې زمونږ استا د، مربي او دهېواد نومیالی علمي ، جهادي،سیاسي او روحاني شخصیت مولوي عبد الهادي اخندزاده (رحمه الله) هم دغسې کمالدارو او جامعو شخصیتونو له ډلې څخه و، حقیقت دادی چې داسې منلي شخصیتونه په هره ټولنه او قوم کې ژر نه پیدا کېږي. بلکې له پیړیو وروسته زیږي،د شک پرته دارواښاد مولوي صاحب دشخصیت دننه داسې ګڼې صوري اومعنوي ځانګړتیاوې او صفات مندل کېدل چې نن په ډېرو مشهورو خلکو کې دهغو نظیر که معدوم ندی؛ نادر ضروردی. ولیس علی الله بمستنکر- ان یجمع العالم فی واحد.

الله تعالی مولوي صاحب ته داسې علمي او عملي صفات ورکړې وو، چې دهغو په وجه یې شخصیت دعوامو او خواصو په منځ کې یوشان منلی او مقبول و، عالمانه شان، صوفیانه مزاج اودرویشانه طبعیت په درلودو دخپلوهمزولو، ملګرو،شاګردانو، مجاهدینو، او خپلوانو لپاره د قوي باور او

کلک اعتماد ځلیدونکی منارو، څنګه چې دقرآن پاک او په نبوي احادیثو کې وړاندوینه شوې چې په نړۍ کې زرګونه خلک داسې دي چې دمرګ وروسته څوک دهغوی نومونه نه اخلي ، اوځیني هغه دي چې له مرګ وروسته دهغوی په مړینه یواځې دهغوی خپلوان او کورنۍ اوښکې نه تویوي بلکې نور سلګونه او زرګونه خلک هم وربانديې ویر اوماتم کوي ، دهغوی فکر او نظر ته په ژوند او دوام ښښلو یې کردار لمانځي، په دې توګه ویلی شوچې ارواښاد مولوي صاحب (عبد الهادي) شخصیت زمونږ په څېر د ناپوهانو لپاره لاربښود او کمزوروته دسرسیوری و.

زه اعتراف کوم چې زما قلم او زما الفاظ زما دزړه داحساساتو او جذباتو د پوره ترجمانۍ کولونه عاجزښیي، او د نومـوړي دسترو انساني اخلاقو علمي صلاحیتونو، او سیاسي پوهې او تجربو د راسپړللو او لیکلو قاصردی،څو ځله مې همت وکړ، چې په دې اړه خپل احساسات او جذبات سره یوځای کړم خو هرځل پکې پاته راغلی یم. اونه یم توانیدلی چې دنوموړي دستر علمي، سیاسي او جهادي سیرت په باب دخپل زړه دننه په پردو کې پوښلي پراته احساسات رابیرون او له نورو سره یې شریک کړم، بالاخر دمشرانو ملګرو بیا بیا ټینګار او اصرار دیته اړکړم څو دنوموړي په ژوند او ویاړلو خدمتونوته داڅو مات ګوډ تورې دپیرزوینو وړاندې کولو په دود وکاږم:

مولوي صاحب ما له نیږدې لیدلی اوتري ډېر څه مې زده کړي وو او هم ورسره په یوځای راته دکار اوخدمت موقع په لاس راغلې ، نوبناءً دادی دلته دنوموړي د درانه شخصیت په اړه خپلې نیمګړې پیرزوینې د درنو لوستونکو سره په دې نیت شریکول غواړم څو زما په ذمه شته مسؤلیت مې څه نه څه اداء کړی وي.

مخکې د دینه چې دمولوي صاحب مرحوم په علمي، جهادي او سیاسي کردار رڼا واچوم غواړم ترهرڅه لومړی دژوند لیک پاڼه یې دلوستونکو په مخکې پرانیزم:

## زوکړه یې:

نوموړی په ۱۳۳۷ل کال کې دپروان ولایت کوه صافي ولسوالۍ اړوند سیاه سنګ کلي( چې دملایانو په کلي سره شهرت لري) کې دسیمې د مشهور روحاني او بزرګوار شخصیت ارواښاد ملا حبیب الرحمان اخنذاده په علمي او روحاني کور کې نړۍ ته سترګې غړولې وې.

ملا حبیب الرحمان اخنذاده چې پخپله سیمه کې په مشر اخنذاده صاحب شهرت لاره، نه یواځې دکوه صافي دننه ورته خلکو د روحاني مرشد په سترګه کتل بلکې دکوی سافي نه بهر د شمالي په کوهدامانو او ده سبز کې هم په لوی شمېر خلک یې عقیدتمن او ارادتمن ول.

## زده کړې یې:

دکاله دننه دعلمي او دیني ماحول په وجه په کوچنیوالي کې زده کړو ته کینول شو ، البته له کوره بهرپه علم پسې هغه مهال ووت چې د ځوانۍ نوخېزې مرحلې ته نـژدې و، لومړي دیني کتابونه یې په کـورکې لـه بزرګـوار پلار،مشر ورور او ترونو ولوستل ، بیا دنورو سبقونو لپاره په شمالي کې د باغ عالم مولوي صاحب په مدرسه ( درسګاه) کې شامل شو، هلته دځینو لومړنیو کتابونو د ویلو وروسته له مولوي نصرـ الله او مولوي اسد الله سره دیره شوله هغوی دواړو نه داستفادې وروسته دکابل په شیوه کیو کې د مشهورمدرس عالم مولوی محمود(چې په صوفي مولوي صاحب مشهورو) درس ګاه ته لاړ، هلته دکافیې په ګډون د ځینو کتابونو ویلو وروسته د پاته نورو زده کړو لپاره پاکستان ته سفر وکړ، دخیبر پښتونخوا مردان ولسوالۍ قیامه مدرسه کې شامل شو، هلته یې دشیخ عبد الرزاق اونورو استادانو څخه شرح جامي او نور کتابونه وویل، بیا له هغه ځایه وروستم ته لاړ چیرته یې چې دوه کاله پرلپسې د فنونو کتابونو له مشهورو استادانو هریو علامه سید قریش بابارحمه الله) او شیخ الحدیث مولانا قاضي محمد امین (رحمه الله) وویل، بیا د فنونودوروستیو کتابونو لکه قاضي، حمد الله اونورو... دتکمیل لپاره دمردان

طورو مشهور مدرس مولانا غلام محبوب صاحب ته ورغـی او هغه څخه یـې دفنونـو کتابونـه مکمـل کـړل، وړه دوره یـې دکوهـاټ پـه قاضـی حسـام الـدین مدرسـه کـې لـه مفتـي محمدنعیم(رحمه الله) څخه وکـړه او دلـویې دورې لپـاره یـې دپېښور جامعه امداد العلوم غوره کړه، چېرته یې چې د لـویې دورې ځو کتابونه له نومیالي محدث شهید مولانا محمد حسـن جان مدني(رحمه الله) او لـه شـیخ الحـدیث مولانـا امـان الله [مروت] څخه وویل او په۱۳٦٦ ل کال کې لـه جامعـه امـداد العلوم څخه یې دفراغت سند ترلاسه کړ.

دشوروي یرغل په وړاندې جهادي مبارزې ته یې کتنه:

کله چې مولوي صاحب په سبقونو پسي لـه افغانسـتانه پاکستان ته سفر کاوه، دغه مهال افغانسـتان کـې دکرغېړنـي کمونستي کودتـاه پرضـد د جهـاد د پیـل ورځـې شـپې وې، جهادي فعالیتونه خال، خال ترسترګو کېدل، لـړ وروسـته پـه ټول هېواد کـې جهـادي فعالیتونـه مـنظم شـول، لـه دینـي مدرسونه په لوی شمېر طا لبان جهادته لاړل، مولوي صـاحب هم جهاد ته دتلونکو طالبانو له ډلې څخه و، ددې لپاره لومړی په میرانشاه کې نظامې زده کړې وکړې او بیا دجهاد پـه نیـت دخپلې سیمې له طالبانو سره یوځای کوه صافي ته ستون شو او د جهادي امورو په منظمولو کې یې کاري رول ترسره کـړ، دیاونې وړده چې په کوه صافي کې دجهاد پـه پیلولـو کـې د ارواښاد مولوي صاحب سربېره ،دغه مشر وورشهید مولوي عبدالصبور اخنداده بنسټېز او قایدانه رول اداء کړی دی، څوک چې په۱۳٦٥ ل کال کې کوه صافي کې دشورویانولخواد ګنـو الوتکود ناڅاپه یرغل په ترخ کې لـه یوشـمیر مجاهـدینو سره یوځـای شـهید شـو، دغـه د شـهادت غمېـزه چـې دټولـو کوسافیوالو لپاره بالعموم او دمولوي صاحب دکـورنی لپـاره بالخصوص ستره غمېزه او خواشینونکې پېښه وه، خوبیا هم مولوي صاحب ته الله جل جلا له په تکلیفونو او مصایبو باندې د صبر قوي حوصله ورکړې وه، او په داسې مواردو کې دستر زغم او اوبرداشت څښتن و، په همـدې کـال یـې دوړې دورې کتابونه و، له څه مودې ځنډ وروسته یې خپلو سبقونو ته پـام وګرځاوه اوپه برې سره یې وړه دوره بشپړه کړه دلویې دورې پر مهال دشهید مولوي صاحب عبد الصبور اخنداده رحمـه الله جهادي ملګرو او قومندانانو کوښښ وکړ چې نوموړی د شهید مولوي صاحب عبد الصبور اخنداده په شهادت سره د رامنځته شوې تشې په ډکولو قانع کړي، او دهغـه ځـای ناسـتی شي، خوداچې ددرس او تدریس په لور یې میلان او رجحان زیات و ، له هغوی نه په مننه کولو یې عذر وړاندې کړ،او په جهاد کې دخپلې کورنی دونډې لرلو لپاره یې خپـل مشرـ وورور ملاعبـد الغفار اخنداده غوره کړ، چې په جهـادي امـورو کـې ددوی کورنی نیابت وکړي، څوک چې ښه هوښیار،مدبر او په سیمه کې مخور،منلی مشر و، د جهاد ترپایه پخپل جهـادي موقـف پاته و او دجهاد دپای ته رسیدو سره سم پخپل کور کیناسـت، دمولوي صاحب له وفات نه نیږدې یونیم کـال وړانـدې یـې د فاني نړۍ څخه دابدي ژوند په لور رحلت وکړ (انا لله وانا الیـه راجعون)

## هجرت یې:

په۱۳٦۱ل کې دمولوي صاحب کـورنۍ لـه افغانسـتانه پاکستان ته هجرت وکړ، اول د کرمې ایجنسۍ په خواجه علـي پنډغا لي کې میشت شول او بیا له هغه ځایـه د صـوابۍ پنـډ غالي ته لاړل، هلته دکا ل یونیم تیرولو وروسـته دکـواټ غـلام باندې سافیانو کیمپ ته لاړل چېرته چې تـردې مهالـه میشـت دي.

## تدریس یې:

په ۱۳٦٦ ل کال کې دپېښور له امداد العلوم نه د فراغـت وروسته دخیبر پښـتونخوا کوهـاټ ولسـوالۍ دانصـارو پـه یومسجد کې یې تدریس پیل کړ، د شلو په شاوخوا کې طالبان ورسره وو ، له لومړیو درجو نیولي تر کافیې، حسامي اوسـلم العلوم پورې یې کتابونه درس کړل په بل کـال د کوهـاټ بـلي ټنګ په نوم سیمې شمس العلوم مدرسې ته دمدرس په حیث لاړ، هلته دیـو کـال تـدریس وروسـته دکـواټ غـلام بانـډې

دمهاجرینو په پنډ غالي کې دمولوي صاحب په هڅونه دمولوي صاحب خالص گوند(اسلامي حزب) دپروان ولایت جهادي امیر مولوي عبد المنان عابد د منبع العلوم په نوم دیوې مدرسې بنسټ کیښود، چې ورته مولوي صاحب دمدرس په حیث راغی ،هلته د دریمې او څلورمې درجې کتابونه درس کړل، راتلونکی کال منبع العلوم ته د چراټ [جامعه محمدیه)نه د فنونو دوه مشهور استادان ( علامه سید قریش بابا او بل قاضي صاحب محمدامین راوستل شول، دهغوی په وجه منبع العلوم ته دپاکستاني او افغاني طالبانو بهیر رامات شو، په دغه کال هم ورسره د دریمې او څلورمې درجې کتابونه وو، په ټولو کتابونو کې طالبان ترې خوشال ول، کله چې دوه کاله وروسته علامه سید قریش بابا او قاضي صاحب له یادې مدرسې مستعفي شول، دقاضي صاحب زیاتره کتابونه لکه (شرح جامي معرب ، سلم العلوم، حسامي هدایه الصلوة اوملاحسن) نوموړي ته ورکړل شول، په هر کتاب کې ورسره دروند شمیر طالبان وو، او طالبانو ته یې د درس طرز اوطریقه راښکونکې او په زړپورې وه.دکواټ دانصارو په مشهوره مدرسه [انجمن تعلیم القرآن پراچه ټاون) کې دحدیثو تکړه استاد او د حضرت مفتي محمد فرید(رحمه الله) صاحب خلیفه مولوي (مطیع الله شاکر) چې دمولوي صاحب پخوانی شاگرد او دتره ځوی دی دمولوي صاحب د تدریسي- اوعلمي صلاحیتونو په اړه رڼا داسې اچوي:

زما او د شهیدمولوي صاحب روح الله روحاني ابتدایي تربیت اوپالنه مولوي صاحب کړې، نوموړی پخپله دڅلورمې درجې طالب و چې مونږ ترې ابتدایي کتابونه ویل، ترکافیې پورې کتابونه مو دمولوي صاحب نه په داسې وخت کې ویلې چې هغه پخپله طالب و، بیاچې کله فارغ شو او په یومسجد کې یې تدریس پیل کړ په اول کال مونږ ترې حسامي او سلم العلوم وویلې،دمولوي صاحب د درس طریقه ډېره عام فهمه وه، اول به یې دسبق اجمال یالنډیز وواېه بیا به یې تفصیل او دکتاب عبارت حل کاوه، په دې توگه یې په سبق کې فیض او برکت هم زیات و، کوښښ به یې کاوچې طالبان په اسانه او روانه لهجه پوی کړي هیڅکله یې مغلق او پیچلې تعبیرات نه کول سبق یې ښه روان اوسلیس و په دې علاوه دهرې روژ ې میاشت کې به یې دعظیم الشان قرآن ترجمه (دوره تفسیر) هم کوله ددې ترڅنگ مولوي صاحب ښه کامیاب واعظ او مبلغ هم و،چې په خلکو یې وعظ زیات تاثیر درلود په دې وجه دخواصو ترڅنگ دعوامو په منځ کې هم منلی او مقبول شخص و، استاد الحدیث مولانا مطیع الله شاکر وړاندې وایي: مولوي صاحب عبدالهادي نه تنها به خپلو شاگردانو ته دینې او علمي روزنه ورکوله بلکې دهغوی اخلاقي او سیاسي روزنې ته هم ځیر و، نوموړی دپروان اوکاپیسا دطالبانو او علماوو داهلسنت والجماعت ټولنې مشرو، په ښه مدبرانه توگه یې دسیمې دعلماوو او طالبانو د سیاسي رشد په روزلوکې وخت په وخت ونډه او کردار ترسره کاوه په دې توگه نوموړی ته د یو جامع شخصیت په سترگه کتل کېدل.

په ورته توگه د خدای بښلي مولوي صاحب یوبل خاص شاگرد مولوي محمد علي خان زاهد چې ډېره موده دمولوي صاحب سره نیږدې پاته دی، او داسلامي امارت په دوره کې د کونړ دبانک رئس هم و اوس فعال مدرس دی دمولوي صاحب د درسي خصوصیاتو په اړه وایي: مولوي صاحب په بالفعل شکل ښه کامیاب مدرس و، هیڅ داسې نه احساسیده به چې هغه یوکتاب درس کاو او هغه دي ورباندې بوج و، په سبق یې هر د متوسط استعداد لرونکی طالب پوهیده، په هر کتاب باندې معلوم شروحات ویلې، هغه ټول یې طالبانوته ښودل ، دفصاحت له پلوه د سبق ویلو سلیقه او طرز یې طالبانو ته ډېر خوښ و، هر لفظ یې چې دخولې ویسته طالب ته پکې شک او تردد نه پاته کېده زکه دلوړې درجې فصیح ژبی استاد و.

دمولوي مطیع الله شاکر پشان نوموړی هم وایي: چې مولوي صاحب خپلو شاگردانوته ددیني تربیې ترڅنگ اخلاقي اوسیاسي تربیه هم ورکوله، طالبان یې دوخت او حالاتو

نزاکتونو ته ځېر کول پخپله یې هم د درس او تدریس ترځنګ دافغانستان له حالاتو او جریاناتو ځان به خبرساته، وخت په وخت یې د خپلو ملګرو سره نوي معلومات او حالات شریکول، خو دطالبانو اخلاقي تربیې ته ډېر متوجه و، همیش به یې طالبان دبدکارو خلکو دملګرتیا او هغو سره داړیکو جوړولو څخه منع کول. دزاهد صاحب په وینا مولوي صاحب پخپله هم په جماعت سره دلمانځه کلک اهتمام لاره، شاګردان یې هم په جماعت سره دلمانځه اداء کولوته متوجه کول.

**دنوموړي په وینا:** مولوي صاحب په درس او تدریس دومره حریص و چې دحکومتي منصب ترځنګ یې تل ارزو دا وه چې خلکوته علمي ګټه ورسوي، دولایت په دوران کې یې ددې لپاره چې یومخ علم ترې پاته نشي،یا یې دعلم سره تعلق کمزوری نشي یوه ځانګړې مدرسه جوړه کړیوه، چې هلته یې دسهار دلمانځه وروسته لومړی دعظیم الشان قرآن ترجمه او بیا یې شرح جامي معرب، هدایه صلواة او حسامي طالبانوته تدریسول دهغه وروسته یې چای څکه، او رسمي کار یې شروع کاوه.

## دپروان او کاپیساه دطالبانو دمشر په حیث یې رول او کردار ته کتنه:

هغه مهال چې افغانستان کې دشوروي او کمونستي رژیم پر ضد جهاد روان و ، دپاکستان په دیني مدرسو کې کومو افغاني طالبانو سبقونه ویل، هغوی دولایتونو په سطحه ددې لپاره چې پخپل منځ کې له یوبل سره وپیژني، دیو بل له غم او درد نه خبر اووسي،یا داچې افغاني طالبان دنویو مذهبي اندونو په لومو کې ونه نښلي ترمنځو یې نوې تفرقې او بلې تېلې پیدانشي داهلسنت والجماعت په نوم جلا، جلا منظمې او اتحادیې جوړې شوې وې، دهر ولایت طالبانو ځانته یوه شوری درلوده، هغې شوری دټول ولایت اړوند طالبانو چارې بررسي کولې اودخپل ولایت دټولو طالبانو یولست به ورسره پروت و، دطالبانو کوایف به یې معلومول، بیا به یې دهر تعلیمي کال په پای کې دافغانانو په کیمپونو کې غونډې جوړولې د اړوند ولایت طالبانو به په هغو غونډو کې ګډون کاو، په دې تو ګه به یې دیوبل سره پیژندل او اړیکې به یې غځیدل، بېلا بېل استعدونه او فکرونه په یوځای راټولیدل دیوبل له معلوماتو او وړتیاوو به خبریدل ، مولوي صاحب د پروان او کاپیساه په سطحه داهلسنت والجماعت دمنظمې او اتحادیې بنسټ ایښودونکی و، کله چې دپروان او کاپیساه داهلسنت اتحادیه تشکیل شوه، مولوي صاحب د اتحادیې دمرستیال په صفت غوره شو، او یوکال وروسته دملګرو په ټینګار او غوښتنه دعمومي مشر (صدر)په حیث تعین شو، ترهغه وخته په دغه موقف او دنده پاته وځو په کندهار کې طالبانو دشر اوفساد پرضد وسلوال پاڅون وکړ، دهغوی دپاڅون سره سم دطالبانو داسلامي تحریک په نوم دافغاني طالبانو یو منظم جهادي او سیاسي تحریک راپورته شو، چې په دې سره دولایتونو په سطحه جوړې منظمې او اتحادیې منحل شوې او دهېواد ټول طالبان او علماء دطالبانو داسلامي تحریک په لیکو اوصفوفوکې منظم او منسجم شول مولوي صاحب هم له خپلو ټولو ملګرو سره یوځای په دغه تحریک کې ګډون وکړ، چې دژوند ترپایه له هم دغه کاروان سره ملګری و او په ډېر اخلاص، للهیت اوصداقت سره یې پکې بېلا بېل خدمتونه تر سره کړل

## دطالبانو داسلامي تحریک په لیکو کې ګډون او خدمتونه:

کله چې دشر او فساد پرضد دهېواد په جنوب کندهار کې دامیر المومنین ملا محمد عمر (مجاهد) رحمه الله په مشرۍ یو کم شمېر طالبانو شرعي پاڅون وکړ، دهېواد دنورو جیدو علماوو ترځنګ مولوي صاحب عبد الهادي اخنذاده هم دیوتګړه جید عالم او مدرس په حیث او دپروان اوکاپیساه دعلماوو او طالبانو له منځه دیو قوي او بانفوذه سیاسي او اجتماعي شخص په توګه ددغه پاڅون څخه په کلکه ملاتړ اعلان کړ، ددې لپاره یې دخیبر پښتونخوا ایالت په جنوبي سیمو کې سترې غونډې جوړې کړې اوپکې یې ددغه پاڅون

په ضرورت او اهمیت ګډونوالوته ویناوې وکړې اوبیا دپروان او کاپیساه دعلماوو او طالبانو سره یوځای لومړی دخوست دلارې نه لوګر او بیا دهغه ځای نه کندهار ته سفر وکړ، ددغه سفر نه په بیرته راستنیدو دپروان او کاپیساه دنورو دوه سوه طالبانو سره یوځای دخوست دلارې نه چهار اسیاب او بیا د کارته سه لومړۍ کربښې ته لاړ، هلته په لومړۍ کربښه کې دشهید ملا بورجان اخند او ملا یار محمد اخند سره یوځای شو،چیرته چې دمسعود په چل ول او دوکه طالبانو ته سخته صدمه ورسیده چې له امله یې طالبان له کارته سه څخه شاتګ ته اړشول او لوی شمېر طالبان شهیدان، ټپیان او بندیان شول دپروان او کاپیساه له ملګرو څخه هم زیات شمېر بندیان او ټپیان شول، آن ځینې ټپیان هم دښمن په لاس ورغلل، کوم چې بیا دهرات په عمومي تبادله کې ددښمن له منګلو څخه راخلاص شول.

دهغه مهال را په دیخوا مولوي صاحب او ملګرو یې په منظم او متحد شکل دطالبانو داسلامي تحریک په لیکو کې جهادونه ،خدمتونه اوقربانۍ ورکړې، لله الحمد تردې مهاله داسلامي په امارت په لیکو کې یې ملګري په مخلصانه خدمتونو اوجهادونو بوخت دي چې په ښو شاندارو کارنامو به یې ضرور د اسلامي امارت قیادت ویاړلري.

هم دا راز کله چې د کند هار په ښار کې دهېواد ۱۵۰۰ جیدو علماوو دطالبانو داسلامي تحریک له مشر ملامحمد عمر مجاهد سره دامیر المومنین په حیث بیعت وکړ، په هغه غونډه کې مولوي صاحب دپروان ا و کاپیساه دیوشمېر جیدو علماوو سره یوځای ګډون وکړ اودامیر المؤمنین رحمه الله سره یې دهېواد دزعیم په حیث بیعت وکړ.

کله چې دهېواد ختیځ ولایتونه د طالبانو لخوا فتحه شول، څنګه چې دهغو په فتحه کولو کې دپروان او کاپیساه طالبانو دنورو طالبانوسره یوځای دقاري احسان الله بریال (دکاپیساه ولایت لپاره داسلامي امارت اوسنی والي) په مشرۍ په ښه عالي مورال ونډه درلوده، کله چې کونړ ولایت فتحه شو دشهید ملا بورجان او اروابناد حاجي ملا محمد رباني په وړاندیز عالیقدر امیر المؤمنین لخوا د۱۳۷۵ ل کال په ۴مه نیټه مولوي عبد الهادي اخنذاده دکونړلپاره دوالي او قاري احسان الله بریال د امنیه قوماندان په توګه تعین شول، شهید ملا بورجان اخند(رحمه الله) دکونړ فتحې بشپړولو وروسته مولوي صاحب ته د کونړ د ټولو ملکي او نظامي ارګانونو لپاره دمسولینو دمعرفي کولو حکم وکړ، هغه و چې د نوموړي د حکم سره سم مولوي صاحب دکونړ د ملکي او نظامي ارګانونو لپاره مسؤلین معرفي کړل او په په لنډه موده کې یې دولایت درياستونو په ګډون ټولې ۱۸ ولسوالۍ فعاله کړې دبازار او ښاروالۍ چارې یې ورغولې ښوونځې، لیسې او مدارس یې پرانستل دترانسپورټ چارې یې تنظیم کړې ددولتي عوايدو راټولولو طرز العمل یې نافذ کړ ، د ځنګلونو وهلو پرضد یې ګامونه پورته کړل پاکستان ته د نا قانونه لاروڅخه د لرګیو په انتقال یې بندیز پلي کړ،په لویو لارو او درو کې امنیت راغی ،دخلکو دسر او مال خوندي کولو په غرض شپه ورځ مجاهدینو ګزمې پیل کړې زورواکان له سیمې وشړل شول اجتماعي عدالت پلي شو.

## په کونړ کې یې سیاسي او جهادي بریاوې:

طالبانو لپاره کونړ ولایت کنټرولول اوپکې حکومت جوړول یو ستر ستونزمن کار و، له نیکه مرغه مولوي صاحب ته الله پاک دستونزو دحلولود اوحکومتي چارو درهبري کولو او له خلکو سره دافهام او تفهیم یوه بیمثاله راښکونکې اومؤثره ملکه ورکړې وه، چې په وجه یې په لنډ وخت کې دکونړ اونورستان [دمرکزي او شرقي] په ګډون په ۱۸ولسوالیو کې داسلامي امارت واکمنې قایمه کړه او داسې چې ترپایه پاته شوه، له شک پرته چې دجنګ دلارې دیوشمېر ولسوالیو نیول طالبانو ته آسان نه و. لیکن هغه له جنګ پرته د هغو فتحه کول واقعاً ستر بری و، دخبرو او ولسونو ته دقناعت ورکولو له لارې بری مندل او پکې داسلامي امارت واکمنې داسې ټینګول چې دمرکزي نورستان له لارې د

پنجشیر ترغرنیو سیمو او دشرقي نورستان په استقامت دبدخشان ولایت ترڅنډو پورې داسلامي امارت واک بې له جنګه غځول تاریخي بریا او کارنامه وه.دډېروپه اند: که هغه مهال دامارت چارواکو دا غوښتی چې دشرقي نورستان (برګمټال) له لارې بدخشان ولایت ته ننوزي او هلته دمسعود او رباني په خلاف نوی محاذ خلاص کړې نوپه اسانه کیدای شو، ځکه تربدخشان پورې دنورستان ټوله سیمه داسلامي امارت ترواک لاندې وه، خو بناء په هرصورت رازو دیته چې مولوي عبد الهادي اخندده داټولې سیمې ولسوالۍ دتدبیر او بصیرت نه په کار اخستلو او خلکو سره دنیږدې مفاهمې درلودو په مټ دامارت تر واکمنۍ لاندې راوستې چې په نیولو کې یې دیو طالب پوزه هم سره نشوه.

داروانښاد مولوي صاحب همدې ځانګړتیاوو اوصفاتو درلودو ته په پام دافغانستان داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال داطلاعاتو او کلتور او بیا د پوهنې وزیر الحاج مولوي امیرخان متقي وایې :مولوي صاحب عبدالهادي په عملي ډګر کې یو موفق اوکامیاب مسئول و ددې خبري دثبوت لپاره دا دري دلایل کافي دي چې یو خو یې دوفات تروخته دپروان او کا پیسادمجاهدینو او طالبانو په منځ کې خپل محبوبیت او دمشرتابه مقام په داسې ډول وساته چې که یې رسمي دنده وه که نه وه خو دا تیر شل کلونه ټولو ورته دمشر په نظر کتل.

بل دا چې پنځه کاله یې داسلامي امارت په وا کمنۍ کې دکونړ غوندي غرني،سرحدي او له نظامي اړخه نهایت مهم ولایت خورا ښه رهبري وکړه په داسې ډول چې هم یې میشت ولسونه لکه دورو ټو غوندې سره لنډ کړل او هم یې په داسې حال کې ولایت دمخالفینو له حملو وساته چې په غرنیو سیمو کې مخا لفینو فعال حضور در لود او لوی لوی مخالف قومندانان له یوې او بلې خواورته اکمالیدل خو د مولوي صاحب د مدبرانه مشرتوب له امله دښمن ونه توانید چې په خپلو شومو اغراضو کې بریالی شي او په دې سیمه کې اسلامي امارت ته کومه جدي ستونزه ایجاد کړي ځکه مولوي صاحب عام اولس په اعتمادکې اخیستی و او اولس د اسلامي امارت په ملاتړ دفاع ته چمتو وو

دمولوي صاحب بله ځانګړ تیا داوه چې سره له دې چې داسلامي امارت مشر تابه ته یې ډېر ځان نه ور ښکاره کاوه او ځان ځلونه یې نه خو ښیده خو دعالیقدر امیرالمؤمنین اعتماد دومره ور باندې زیات و چې ډیره کمه به پیښه شوې وي چې مشر ملاصاحب دې دده خبره پر مځکه اچو لي وي چې همدا په نوموړي داسلامي امارت د زعیم د بشپړ باور نښه بلل کیدای شي.

مسعود په ځلونو کوښښ وکړ چې طالبان په کونړ کې په جنګ کې مصروف وساتي، څو دبدخشان دلارې هغه ته مشکلات پیدانکړې، ددې لپاره یې په لومړي ګام کې له پنجشیر څخه دمشرقي پخواني شړل شوي قومندانان چې پنجشیرته یې پناه وروړیوه لکه حضرت علي ، حاجي قدیر اوکشمیرخان له پریمانه پیسو او اکمالاتو سره کونړته راولیږل څودپیسو ورکولو دلارې خلک دمجاهدینو پرضد پورته کړي دپاکستان دلارې نه حاجي زرین او حاجي روح الله دیته هڅول چې هغوی دواړه هم په کونړ کې دطالبانو پرضد جنګونه پیل کړې ملک زرین څو ځله داسمار ولسوالۍ دنیولو کوښښ وکړ خو هر ځل دشکست سره مخ کېده، په ورته توګه کشمیر خان د شیګل ولسوالۍ دنیولو هڅه وکړه، خو هغه هم بریالی نشو، هم دا راز دپیچ درې له لارې ځینو قومندا نانو څو ځله کوښښونه وکړل چې ځیني ولسوالۍ ونیسي۔ خو دجزي پرمختګ پرته هغوی کوم پراخ پرمختګ ونشو کړای، ځکه چې مولوي صاحب دقومونو سره له ډېر نیږدې په تماس او ارتباط کې و، او دولس دملاتړ په بدرګه په مخالفینو برلاسی و، تردې پورې چې کله هغوی ټول په کونړ کې ناکام شول مسعود ټول لرې کړل دټولو لپاره دمشرپه توګه یې سیاف ته وظیفه ورکړه او له پنجشیرنه یې هغه نورستان اوکونړ ته راولیږه، هغه (سیاف) پخپل ټول توان هڅه وکړه، چې دمخالفینو متلاشي ځواکونه سره یوکړې او په کونړ کې دامارت پرضد قوي محاذ

پرانیزي د اوریدو له قراره سیاف به په خبرو کې دکونړ خلکو ته ویلي: چې زما پلرونه اونیکونه دکونړ نورګل ولسوالۍ له مزار درې نه پغمان ته لاړدي، زه هم په اصل کې کونړی یم! ماسره ودریږئ او په ما ننګ وکړئ! خو هیچا یې فریاد نه اوریده او ورسره ملګري نشول بالاخر سیاف دځو ورځو تیرولو وروسته ناکام بیرته پنجشیرته ستون شو، په دې توګه دمسعود دا ارمان پوره نشو چې په کونړ کې دجنګ پراخولو له لارې امارت ته ستونزې ایجاد کړيدهغه د پلانونو په خنثا کولو کې مؤثر اوفعال رول دوالي په حیث دمولوي صاحب د فراست و، دکوم په برکت چې یې دکونړ خلک او علماء په ځان رامات کړي وو په دې خبره دنیږدې ټولو خلکو اتفاق وه چې دکونړ والي صاحب ښه سړی دی او مونږ تري راضي یو! تردې پورې ماته په زړه دي کله نه کله به چې دباجوړ او شاوخوا سیمو علماء دمولوي صاحب دلیدو لپاره راتلل په هغوی کې ځینو به ویلي: ستا په انتخاب کې یقیناً امیر المونین حق ته رسیدلی !!که له تا پرته بل هر څوک وای دا ولایت به وخت په سر دطالبانو له لاسو وتلی و، خو داچې ستا پشان هوښیار او مدبر انسان یې رالیږلی دی، په دې انتخاب کې هغه مصیب دی انشاء الله.

مولوي محمد علي خان چې په دغه ټوله دوره کې دمولوي صاحب له باوري او راز دارو ملګرو څخه و، وایي: دمولوي صاحب دبري راز په دې کې و، چې نهایتي مهربان او زړه سواند مشر و، او ددې لپاره الله تعالی ورته عجیبه لویه حوصله ورکړیوه دشپي ترناوخته به ددې لپاره ناست و، چې کیدای شي دچا کار ترما پورې بند وي هسي نه هغه راشي او زه ویده یم بیرته به مایوس لاړشي! هم دا وجه وه چې درسمي وخت نه پس به یې هم دخلکو په عریضو احکام لیکل او هیڅ یو عارض یې په دې وجه بیرته ندی لیږلی چې اوس رسمي وخت ختم شوی دی، هم دا سبب و چې دعوامو په زړو کې ورسره محبت وه او هر سړي ته ګران و.

**هغه وایي:** دمولوي صاحب مزاج دتعصب او کینې څخه هم ډېر پاک و، کونړ یو داسي ولایت و چې دنورو ولایتونو په پرتله پکې مذهبي اختلافات ډېر وو، مولوي سره ددې چې پخپل مسلک باندې ټینګ ولاړو، خو دنورو علماوو یې نهایتي احترام او قدر به کاو، دهغوی سره تعصب او کینه یې نه درلوده، دهغوی سره راشه درشه او تعلقات یې یومخ عادي ووچې په دې اړه ترپایه دهیچا لخوا کوم شکایت ندی اوریدل شوی.

هم داشان نرمه رویه یې دومره زیاته مؤثره او راښکونکې وه، چې مخالفینو هم ورباندې اعتراف کاو،حتی یوځل یو مخالف قومندان چې دباجوړ نه کونړ ته دطالبانو خلاف جنګ ته را ته، هغه دمرورۍ په سرحدې ولسوالۍ کې په یو کورکې ځان پټ کړی و ، د کور څښتن چې یې نږدې ملګری و هغه ته مشوره ورکړه چې جنګ ته له تلو وړاندې یو ځل والي صاحب سره وګوره او بیا ځه،هغه ویل: څنګه ورسره ووینم؟ کوربه و ویل: ستا ضامن زه یم راځه چې والي صاحب ته اوس ورشو، له هغه سړي سره مخالف نیغ مولوي صاحب ته راغی ،مولوي صاحب سره دلیدو وروسته هغه دومره متاثر شو چې له هم هغه ځایه دخپلو مخالفینو ملګرو سره جنګ ته روان شو او ترپایه دامارت سره ملګری پاته و څو چې امریکا په افغانستان یرغل وکړ او طالبان له کونړاو نور هېواد نه وتلو ته اړشول هغه دامارت نه خپله لاره بدله نکړه.

## دستونزو اومشکلاتو پرمهال یې د بیمثاله استقامت اوجرئت بېلګې:

څنګه چې وړاندې مو اشاره وکړه دټلوالې مشر مسعود کوښښ کاو څو په کونړ کې دامارت په وړاندې مشکلات ایجاد کړې ددې لپاره د شر اوفساد د دورې قومندانان یې د ډول ډو لالچونو ورکولوله لا رې جنګ ته هڅول، هغوی د مسعود نه پیسو هضمولو ځای په ځای جنګونه اوبریدونه کول، یوځل مخا لفینو دننګلام په ولسوالۍ حمله وکړه مخالفینو ولسوالۍ ونیوله،تردې چې دولایت لورته یې

پرمختګ هم وکړ، مولوي علی خان زاهد وايي: دغه مهال دوه شپې مولوي صاحب خوب ونکړ او خپله ټوله شپه بېلابېلو پوستو ته ورتلو او طالبانوته يې روحيه ورکوله چې ګورئ حوصله دلاسه ورنکړئ اوپخپلو مورچلونو کې بيدار اوسئ هغه وايي: دغه مهال ورسره خپل ساتونکي هم نه وو ځکه ټول يې لومړۍ کرښې ته ليږلي وو، يواځې دغه مهال ز ما نه علاوه ورسره مولوي نورجلال(دکورنيوچارو وزارت معين) او اينجنر ګل آغا (دمولوي نجيب الله ورور) ملګري ول چې دولايت دفاعي پوستې مو کتلي او مجاهدين مو بيدارول چې غفلت ونکړي، په دوهمه ورځ زه ورسره تر دوه بجو تم شوم خوماته نور خپل صبر ځواب راکړ زه ويده شوم، خو هغوی ټوله شپه بيدار ول او په مجاهدينو ګرځيدل، په سبا ته طالبانو مخالفين دولايت له حدودو بيرته په شا وتمبول او ننګلام ولسوالۍ يې ونيوه

په ورته توګه يوځل مخالفينو دشيګل ولسوالۍ له استقامت نه دمجاهدينو ددفاعی پوستو اولسوالۍ دوادنۍ پر نيولو اول خط دشينکوړک سيمې ته نږدې کړ، کومه چې ولايت ته لنډه پرته ده، دغه مهال له ځينو نورو ولايتونو څخه دکومکي مجاهدين راغلي وو، هغوی په دې حات ليدو دومره ورخطاء شول چې ټولو ځانونه دولايت مرکز( اسعد آباد) ته ور سول او مشران يې نيغ مولوي صاحب ته ورغلل هغه ته يې وويل : پنځې دقيقې وخت لرئ که ولايت خالي کوي مونږ پنځه دقيقې تم کيدای شو که کوم ضروري شيان وي هغه راوخلئ مخالفين مرکزته لنډ دي، اومونږ خو خامخا درومو دلته جنګ ګران دی او ولايت دسقوط کوي ملګري يې ځايه مه خرابوئ! مولوي صاحب هغوی ته وويل: که تاسو خامخا ځئ زه تاسو نه راګرځوم په مخ موښه دا خو مخالفين اوس هم لري دي مونږ دلته دچغسرايې( اسعد اباد) بازار له دروازو نه مخالفين په شاتمبولي او دولايت دپريښودو سوال نه پيدا کيږي اونه دومره بيهمتې به وکړم په دې سره هغوی موټروته پورته شول او په منډه روان شول مولوي صاحب خپل موټرته پورته شو خپلو ملګرو سره يوځای شينکوړک ته ورغی هلته ی کونړ کې په خدمت مامور طالبان پاته وو کومکي کسان تښتيدلي وو، دمولوي صاحب په حکم مجاهدينو خط واچوه او بيا څو ورځې پس شهيد ملا داد الله اخند په راتګ مخالفينو باندې تعرض وشو او په لنډ وخت کې ولسوالۍ ونيول شوه.

مولوي علي خان وايي: کله چې دکومک لپاره راغلي کسان بيرته وتښتيدل دې کار دشته مجاهدينو په مورالونو زيات منفي تاثير وکړ، خو شينکوړک ته دمولوي صاحب تګ او هلته دخط اچولو حکم مجاهدينو ته مورال او حوصله ورکړه بيا مولوي صاحب ماته دنورو ملګرو نه جلا ماته ويل:دوی ماته وايي ولايت تخليه کړه، اياولايت داسې تخليه کړم چې زه تري ژوندی ووزم؟ زه به ترهغه ولايت مخالفينوته پرنيږدم چې څو زما مړی له دې ځايه نه وي لاړ ، زکه په شريعت کې له جګړې نه تيښته او په شاه تګ جوازنلري... خو انشاء الله مونږ به برى ترلاسه کوو لوی تشويش نشته.

## داطاعت کولو جذبه يې:

مولوي صاحب چې دشريعت ښه خبير عالم و، هميش به يې دشريعت په حکمونو خپله هم دعمل کوښښ کاو اونورو ملګروته به يې په شرعي حکمونو دعمل کلکه توصيه کوله دځان په باب به يې ويلي: زه دلته دخدمت او داعلی کلمة الله په سپيڅلې جذبه او اراده راغلی يم، له دې پرته بله هيڅ اراده نلرم، اونه راته په خدمت کې دولايت څوکۍ ستر اهميت لري که ما امير المومنين دو لايت څخه لرې کوي او په ځای يې راته بل ددينه وړوکی مسوليت راکوي نوزه يې په قبلولو کې تردد نلرم زکه چې ماته دولايت څوکۍ مهمه نده بلکې دامارت واکمنې مهمه ده او په امارت کې خدمت مهم دی که هغه په لويه څوکۍ وي او که په وړه!

## له ریاکارۍ اوځان ښوونې کرکه:

د مولوي صاحب هر کار دالله(جل جلاله ) درضاء حاصلولو لپاره کاو، دغه وجه وه چې تل به یې له ځان ښوونې او دخپل نوم ځلولو نه نفرت درلود، کوښښ یې دا و چې خلکو ته یې ګټه ورسي او بې ځایه وخت تیر نکړي، له عبثیاتو یې نفرت و.

دامارت دمشرتابه عالیقدر امیر المؤمنین(رحمه الله) ورباندې کلک باور او اعتمادو دامارت په وخت کې کونړ یواځینی ولایت و چې دهغه دکُلي اوجُزي عوایدو مصرفولو واک یې دوالي صلاحیت وبل پلو مولوي صاحب دبیت المال په مصرفولو کې دځان په اړه له پوره تقوا او احتیاطه کار اخیسته البته دمجاهدینو دستونزو په حلولو کې یې لاس بیخي خلاص وپه طالبانو زیات مهربان و، همیش به یې دمجاهدینو او طالبانو لپاره دکالیو او خوړو په برابرولو کې له سخا کاراخیسته او هم دعام ولس په بې وزلانو او غریبانو مهربان و، همیش یې دعامو خلکوته نغده کومکونه لیکل ، په خاصه توګه په علماوو یې زیات پام و، دقومونو اوقبایلو مشرانو او ستازو ته یې د پخوانیو حکومتونو ددود او دستور سترګه کتل ورته پګړۍ او تحایف به یې ورکول دهغوی دشان او مقام سره سم به یې دهغوی نوازش کاو،دقبایلي سیمو مشران اوعلماء چې به کله ولایت ته راتلل هغوی ته له استوګنځیو نیولې ترسورلیو پورې ټولې اسانتیا وې برابرولې په احترام او درناوي به یې هغوی بیرته رخصتول دنوموړي دهمدې رویې په برکت په ټولو قبایلي سیمو کې داسلامي امارت مخالفین نشوای تم کېدلی، خلکو په لارو تګ راتګ ته نه پرېښودل، یو ځل دمسعود په اشاره دکونړ یوشمېر مخالفینو غوښتل دمهمند ایجنسۍ اړوند شیخ بابا او سوران سیمو نه په تیریدو دشونکرۍ او ننګه سر دلارې په خاص کونړ او سرکانو ولسوالیو حملې وکړي، دمولوي صاحب لخوا قبایلوته دیولیک په ورلیږلو هغوی ټول راووتل له مخالفینو څخه یې وسلې او مهمات ونیول او اجازه یې ورنکړه چې په کونړ کې مشکلات پیدا کړي، دا هرڅه دمولوي صحاب دښې حکومتدارۍ او د اسلامي رویې په برکت کېدل چې دمخالفینو ټولې دسیسې او شومې توطئې یې شنډې کړې

مولوي صاحب تل خپلو ملګروته دتقوا ،اخلاص، للهیت او ددښمن په وړاندې داستقامت او جرئت توصیه به کوله په خاصه توګه طالبان خو یې خپلو مسؤلیتونو ته ډېر متوجه کول او دحالاتو نزاکتونو ته یې ځېر کول دهغوی دستونزو او حوایجو پوره کولو په باب یې پوره پاملرنه درلوده په دې علاوه دطالبانو دقربانیو، دهغوی داخلاص زیات قدردان و،او ورباندې دپلار په څېر مهربان و.

په دې علاوه مولوي صاحب خوش طبعه و، خو ازاد طبعه نه و، له ملګرو سره یې په مجلسونو کې ظریفانه برخورد لاره ، عادي ټوکې ټکالې یې هم کولې، د استادانو له خولې اوریدلې ظریفانه نکلونه او کیسې به یې کولې، لیکن ازاد طبعه انسان نه و، دشریعت څخه یوادنی مخالف حرکت ورته دزغملو نه و، اونه یې دشریعت څخه په مخالف عمل سترګې پټولې په ښکاره یې له بیحیایۍ او منکراتو کرکه او نفرت درلود، خپلو ملګروته یې تل په کلکه له بدو اخلاقو او بدو کړنو څخه دپرهیز توصیه کوله هم دا راز مولوي صاحب بدګفتاره نه خوږژبی مشر و، که له یوچا به هرڅومره لویه سهوا او خطاء وشوه هغه یې راټه نه، چا یې له خولې کنځلې ندي اوریدلې بل دټولو خلکو رایو او مشوروته یې دقدر په ستر ګه کتل، په دې لړ کې یې دیو عام ساده سړي خبرې ته یې هم په مجلس کې غوږ کیښود دهغه مشوره یا خبره یې په پوره غور سره اوسړه سینه اوریده.

په کورني ژوند کې یې هم دچا سره کومه ستونزه نده راغلي، ترپایه یې دخپلو خپلوانو سره حسنه روابط لرل، ټولو ورته داحترام په نظر کتل مولوي صاحب ذبیح الله چې دنوموړي دتره ځوی او اوږده موده دپروان او کاپیساه دطالبانو نظامي دلګی مشر پاته دی وایي:مولوي صاحب له کورنیو معاملاتو نه نیولي تر جهادي او سیاسي معاملاتو

پورې په ټولو کې معتدل او میانه روه دریځ څښتن و،په کورني ژوند کې تر اوسه له نوموړي څخه هیڅ یو خپل یا رشته دار ندی خفه شوی ، دهر چاسره یې صمیمانه برخورد لاره، په دې وجه یې دهرچا یې احترام کاو ، هم دا راز په سیاسي او جهادي میدان کې یو کامیاب، مدبراو په کارپو مشر و دکونړ غونډي له ستونزو او مشکلاتو نه ډک ولایت کنترولول ددې ښکاره دلیل دی چې نوموړی دښې حکومتدارۍ له اصولو او رموزو څخه خبرو دکومو پېژندل چې دهر مشر او واکمن لپاره ضروري دي.

په دې علاوه یې دخپلو استادانو سره یې هم ډېر نیږدې اړیکې لرل، په خاصه توګه د شهیدشیخ الحدیث مولانا محمد حسن جان مدنی سره یې زیات محبت و، په هغه علاوه علامه سید قریش بابا قاضي صاحب محمد آمین او دطورو مولانا غلام محبوب وربانډې له ځان هم ګران ول، دتصوف او سلوک په برخه کې یې بیعت له حضرت شیخ الحدیث مفتي اعظم محمد فرید (رحمه الله) څخه کړی و، سبقونه یې پای ته رسیدلي وو، اوخلافت ته نیږدې وچې مفتي صاحب (رحمه الله) وفات شو، دهغه د وفات وروسته یې بل چاته رجوع ونکړه.

په افغانستان دامریکایانو یرغل او داسلامي امارت سقوط له امله نوموړی سخت خواشینی و، همیش به یې ویلي چې وروستۍ لویه ارزو مې داده چې افغانستان له امریکایانو ازاد شي او پکې یو واربیا داسلامي امارت واکمنې راشي په موجوده امریکا یې رژیم له کار کوونکو یې زیات بدانګېرل دافغانانو ستونزو ،کړاونو او مشکلاتو ډېر خفه کاوه، همیش یې دافغانانو لپاره د ازاد مسلمان او خوشال راتلونکي دعاء کوله.

## ناروغي:

دځه مودې راهیسې ورته دشکر او د وینې فشار ناروغې پیدا شوې وه، دهغې په وجه یې روغتیایي حالت ښه به نه و، په ژبه یې له ناروغۍ څخه شکایت نه کا و، څه موده پس یې دسترګو لید هم کمزوری شو، کرار کرار یې نیم بدن متاثر شو، دعلاج او درملنې کوښښونه یې وکړل قاري صاحب بریال اوملګرو یې وخت په وخت پوښتنه کوله، له وفات وړاندې یې روغتیا یې حالت ترډېره را ښه شوی و، دسترګونظر یې هم یوڅه بیرته ځای ته راغلی و، خو داچې دمرګ ټاکلې نېټه نه بدلیږي،نو ټول تدبیرونه ناکام شول بالاخر دتمې او توقع خلاف د۲۰۱۴زکال د لسمې میاشتې په ۳۰ مه نیټه دپنجشنبې په ورځ دسهار داشراق لمانځه کولو وروسته یې روح والوت او دتل لپاره یې سترګې دفاني نړۍ څخه پټې شوې داولادونو سربیره په سوونو شاګردان(چې زیاتره یې دیني علماء مدرسین اومجاهدین دي) مجاهدین او ملګري صدقه جاریه پریښودل په جنازه کې یې په لنډوخت کې لوی شمېر عوامو او خواصو دامارت مسولینو اومجاهدینو ګډون وکړ،دجنازې وروسته یې جسد دکواټ غلام بانډې ماجرینو په هدیره کې خاوروته وسپار ل شو انا لله وانا الیه راجعون، ان لله ما أخذ وله ماأعطی وکل شئ عنده بأجل مسمی.الله تعالی دي مولوي صاحب ته مغفرت نصیب کړي او دنوموړي ټولې ستړیاوې، جهادونه ، درسونه او تکلیفونه دي قبول کړي او الله تعالی دي دي ورته په جنت الفردوس کې ځای ورکړي او دنوموړي کورنۍ، خپلوانو، شاګردانو ملګرو او دوستانو ته دي جمیل صبر په نصیب کړي آمین.

ليکوال: داسلامي نړۍ مفکرعالم مولانا سيد ابو الحسن علی ندوي (رحمه الله) ژ: ابوظهير

# په اسلامي هيوادو کې داسلاميت او مغربيت ترمينځ کشمکش

## تونس

دتونس ولسمشر-( بورقيبه) له کړو وړو او ويناوو داسې ځرګنديږي چې دنوموړي هغه کلتوري سفر(کوم چې دده دافکارو همرنګ دی، د کوم تلقين چې مغربي او مسيحي داعيان او مستشرقين کوي) دوام ولري، او تر اوږدو مهالو پايلو به وغځي او اوس په هغه مرحله کې دی چيرې چې داشاريو او کنايو حدود پای ته رسي، په دې توګه اوس نومړی د کوم ډار او انديښنې پرته خپل اندونه ښکاره کوي په اړه يې د جسارت څخه کار اخلي، ددې خبرې عې دليل دنوموړي هغه ويناوې دي، چې په اسلامي نړۍ کې يې يوه ستره هنګامه پيداکړه، تونس کې دنړيوال کلتوري کانفرانس مدرسينو او مربيينو ځانګې ته دوينا پر مهال يې ووېلي [چې دتونس ورځپاڼو دخينو فقراتو اوجملو په حذفولو خپره کړيوه چې په اسلام او درسول الله (جل جلاله) په ذات يې کلکې حملې کړې وې] او هم رسمي ورځپاڼو حذف کړې وې دلبنان څخه خپريدونکي اوونيز اخبار الشهاب دخپل اووم کال په لومړۍ ګڼه کې کومه چې په ۱۹۷۴زکې داپريل په ۱۵مه نيټه له چاپه راوتي لاندې فقرې خپرې شوې:

(۱)- قرآن کې تضاد دی، چې عقل يې نه مني لکه: يوځای وايي﴿ قل لن يُصِيبَنا الا ماكتب الله لنا اوپه بل ځای کې وايي:اِن الله لايُغيرُ مَابِقومٍ حَتى يُغَيرُوا مَا بِانفسِهم.

**ځېرنه:**

د تونس ولسمشر-ته چې د کومو اياتونو ترمنځ تضاد ښکاري! يا داچې نوموړی له عربي ژبې سره نابلد دی [ځکه چې ذده کړې يې فرانساه کې کړې] او يا دا چې د قرآن او دهغه تفسير د نه مطالعې پايله ده،که د اسلامي علومو يې ادنی عالم ته يې هم رجوع کړيوه، نو ددې شبهې ښکار کيده به نه!

(۲) ـ محمد صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :ژ) يو ساده انسان و، چې په عربي صحرا کې يې زيات سفرونه کول او رايج الوقت خرافات اوريدل، بيا يې هغه (خرافات) په قرآن کې نقل کول لکه دموسی دعصا قيصه؛ چې عقل يې دتحقيق وروسته منلوته تيارندی!يا لکه داصحاب کهف قيصه!

**ځېرنه:** پورته تور پوري کول هم دتونس د ولسمشر-دناپوهی او دهغه فکري انتشار غمازي کوي، کوم چې ۱۹مې پيړۍ په پای کې په نويو ذده کونکو پيدا شوی ، هغه مهال علمي اوتاريخي بحثونو وده نه وه مندلې! ليکن په نوي عصر-کې دغه ډول دعوې کوم جواز نلري او بريښي ې چې ولسمشر-بورقيبه قرآن پاک درسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تاليف بولي! نه اسماني کتاب!

(۳)- مسلمانانو محمد هم معبود ګرځولی ! ځکه هميش هغه [محمد صلی الله عليه وسلم] يادوي! ددې دا مطلب دی چې الله په محمد رحمت ليږي! کوم چې د محمد دخدايې درجې سره مرادف ده!

ځېرنه: دا هم دولسمشر- بورقيبه دناپوهی بل دليل دی، چې په هره موضوع کې دتحقيق پرته دخولې چولولو شوق پوره کوي، درود او دعاء د معبود ګرځولو سره تړي،حا داچې دغسې دعاګانې په ټولو اسماني او ديني کتابونو کې هم راغلي چې

ورځخه پخپله دانسان دبنده ګي او احتياج ثبوت جوتيږي. چې ورته له خدايه درحمت دنزول غوښتنه کيږي(الصباح – تونس دمارچ ۲۰- ۲۱مه ۱۹۷۲ز).

مونږ دنوموړي په پورتنيو ويناوو ددظ زياته تبصره نه کوو، ځکه ولسمشر بورقيبه کوم دپام وړ علمي مقام نلري، او نه دهغه د ويناوو ترشا کوم فکر يا مطالعه شتون لري، البته ددغو څرګندونو څخه چې کومه نتيجه راوزي هغه داده چې ولسمشر بورقيبه د کمترۍ احساس اود ذهني غلامۍ ښکاردی.هغه اسلامي زده کړې دخپل عمر په داسې وخت کې ندي کړې چې ور کې پوهه پيدا کېدای شي او س يوه ضروري پوښتنه دا پاتـه ده چې هرهغه تن چې دغه ډول اسلام دښمن اندونه (نظريات) ولري ايا هغه بيا هم دننه داسلام په دايره کې ګڼل کېدای شي کنه؟ او هغه ددې حق لري چې په داسې هېواد حکومت وکړې چې اکثريت وګړي يې مسلمانان دي؟

دولسمشر ددغو څرګندونو په غبرګون کې داسلامي نړۍ او په خاصه توګه ديني کړيو کې اضطراب وليدل شو، دپورته پوښتنې غوره ځواب [اتفاقاً په عين هم هغه ورځو کې د مدينې داسلامي جامعې (مدينې پوهنتون) دتعليمي کميټې غونډه روانه وه، چې ورته دزياترو اسلامي او عربي هېوادونو څخه وتلي استادان او پوهان راغوښتل شوي وو، زه هم ديادې کمېټې دغړي په حيث حاضر وم، دغه مهال په يو جلا ناسته کې دبورقيبه دپورتنيو څرګندونو څېړنه او ارزونه و شوه، او بيا په پای کې دغونډې ټولو ګډونوالو يې غندنه وکړه هم يې دبريښنايي پيغام دلارې بورقيبه ته دعلماوو پيغام واستول شو، په کوم کې چې په ښکاره ددغسې افکارو خاوند داسلام له دايرې څخه وتلی ګڼل شوی!

په پورتنو درې نيوکو سربيره کومې چې دهغه په وينا کې راغلې، دبورقيبه چې نور کوم افکار درسول الله ﷺ دحيات! اسلامي عقايدو او دعبادت دطريقو په اړه ښکاره شوي دي، له هغو جوتيږي چې نوموړی ولسمشر نه يواځې داسلامي اصولو له مباديو او شريعت سره موافق ندی بلکې غواړي دتونس مسلمانان هم دبې دينۍ لورته بوزي، او دهغوی په زړونو کې هم ددينې عقايدو او حقايقو په اړه شکوک او شبهات واچوي ددې پېښې نه دا اندازه لګول ګرانه نده چې هغه تونس کومه خوبيول غواړي؟ هغه تونس چې دابن خلدون په څېر لوړرتبه اسلامي فکر، عالم او محقق يې پيدا کړی ، په کومه خاوره کې چې سلګونه محدثين،فقهاء، مشايخ او اولياء ه پيداشوي دي، مونږ پوهېږو چې دولسمشر بورقيبه په وينا هلته داسلامي کړيو لخوا دنه غبرګون ښودو ورروسته تونس ديوې سترې غربې بېلګې کېدو انديښنې نورې هم سيوا شوې او ددې لپاره کيدونکي کوښښونه نورهم تيزۍ روان دي!

## الجزاير:

دلکونو مجاهدينو د بيمثاله قربانيو وروسته چې په ۱۹۶۲زدجولايې په ۳مه نېټه دفرانسوي ښکېلاک داشغال په پای ته رسيدو الجزاير ازادي ترلاسه کړه او دواک چارې يې دازادۍ پوځي محاذ ته وسپارل شوې دفرحات عباس او احمدبن بلا په مشرۍ خپلواک حکومت جوړشو، کوم چې دبن خده دجلا وطن حکومت ځای ناستی شو، په ۱۹۶۳ ز کې دستمبر په ۱۵مه نېټه رايه اچول ترسره شول په نتيجه کې يې بن بلا دخلک ديمکراتيک الجزاير ولسمشر غوره شو، احمد بن بلا دجمال عبد الناصر له دوستانو او همفکرو له ډلې څخه و ، دهغه په انتخاب کې جمال عبد الناصر ملاتړ او دهغه مرستو هم رول لاره،په واک کې راتلو سره جوخت الجزاير داشتراکيت په لور روان شواو دجمال عبد الناصر په څېر يې د ديني ذهنيت د را محدودولو او له حکومتي کړيو څخه دلري کولو کوښښ وکړ او په مقابل کې يې دکمونزم پلوو رژيمونو سره يې اړيکې پراخ کړل .

الجزاير کې جهاد او جنګ د شهادت او اسلامي غيرت په جذبه و شوی ، ورکې دقربانۍ او ايثار داسې پېښې و ليدل شوې چې په تيرو نيږدې څو پيړيو کې دهغه مثال نه مندل کېږي.[ ديوې څېړنې له مخې دالجزاير دازادۍ په جنګ کې ۱۵لکه خلک شهيدان شوي (الاصابه الجزاير)]خو دازادۍ ترلاسه کولو وروسته سياسي قيادت دهغه چا لاسو ته ورغی چې هغوی

له ديني او روحاني مرکزونو څخه لري په فرانسوي روزنتونو او تعليمي ښوونځيو کې روزل شوی و، په هغوی کې ځوتنه داسې مشران او رهبران هم ول چې ورته تـه عربي ژبه اجنبي ژبه وه، هغوی تريوې مودې پورې په محبسونو کې يا په غير اسلامي چاپيريال کې دژوند تيرو لو له امله په ذهني توګه داسلام له اخلاقي ښوونو سره نابلد ښکاريدل، هغوی د هېواد په تعمير او بيا ودانولو کې ددېني اساساتو پر ځای د نا اسلامي بنستونو څخه د کار اخيستوهڅې وکړې.

**ځېرنه:**

په ۱۹۶۲ زکې داپريل په ۵مه نېټه هندوستان کې دانګريزې ميډيا لخوا خبر خپور شو چې په هندوستان کې دالجزاير دعبوري حکومت استازي شاغلي بَکر په يو خبري کانفرانس کې وويلي: چې ازاد الجزاير به يو سيکولر جمهوري هېواد وي البته کلتور به يې عربي او اسلامي وي دټولو ښاريانو حقوق او مکلفيتونه له يوبل سره به برابر وي او دملګرو ملتونو لخوا منظور منشور او بشري حقوق به په الجزاير کې نافذوې.

ددې حالت اندازه (دکوم پرضد چې دالجزاير اسلامي روح او دشهيدانوپاکو وينو احتجاج کاوه) دالجزايري علماوو د يوې وينا څخه کېږي کومه چې مونږ ته دلندن ديوې يهودې ورځپاڼې( observer jewlsh) له لارې رسيدلی ياده ورځپانه د ۱۹۶۲ ز کال داګست ۳۱ مې نيټې په ګڼه کې په الجزايرکې دخپل خبريال دخولې ليکي:

دالجزاير ديني رهبرانو اعلان کړی دی چې په الجزاير کې به اسلام او عربي ژبه برتري لري، هغوی پرهفو ملت پالو ګوندونو کلکه نيوکې کړې، کوم چې داوسنۍ زمانې سره برابر دهغه نوي الجزايري حکومت ملاتړ کوي،چې پکې به دين په حکومتي چارو کې ونډه نلري.

دعلماوو لخوا په دغه وينا کې په صراحت ويل شوي چې د الجزاير جنګ دخپلو هغو شهيدانو سره د بې وفايې او خيانت ارتکاب دی کوم چې داازادۍ په لار کې شهيدان شوي او دابه په تاريخي مقصد کې بشپړه ناکامې ګڼل کېږي، که اسلام دحکومت د رسمي دين! او عربي دهېواد د رسمې ژبې په توګه ونه ګرځول شي ولې .دجنګ بندۍ دايريان لوظنامه په ښکاره ډول وايي: چې دالجزاير په راتلونکي اساسي قانون کې به يوه ماده دديني ازادۍ په اړه وې فرانسوي او عربي دواړه ژبې به د دولت رسمې ژبې وې! او داچې دهېواد داستازو په اړه طې شوې وه چې دستمبر په ۹مه به هغوی راغونډيږي دهېواد داساسي قانون مسوده به جوړوي دا ناسته ځوځله وځنډول شوه، دپوځي او سياسي چاروا کو دکشمکش په وجه په ياده دغه نيټه جوړه نشوه.

اوس دالجزاير علماء د فرانسوې واک دپای ته رسيدو وروسته په لومړي ځل ديوې ښکاره وينا له لارې اعلان کوي چې ازادې او دهېواد اقتصادي پرمختګ دالجزاير دانقلاب غايت نشي ګڼل کېدای هغوی پخپله وينا کې وايي: هرآزاد ولس خپل جلا انفرادې وجودلري، که داسې نه وای نو دنړۍ قومونه به ديوبل سره داسې کډ وډ وای لکه په اوبو کې کبان، دالجزايريانو فرانسويانو او هسپانويانوترمنځ به کوم توپيرنه و پاته، که چېري داسې نو مطلب داچې الجزاير به يو پرانيستی نړيوال رياست وګرځي مونږ دغسې يو حالت سره اختلاف لرو، مونږ الجزايريان يو، مونږ ځانګړی او خپلواک وطني شخصيت لرو او دا زمونږ ددين( اسلام) زمونږ دژبنيو( عربي) اقدارو او تاريخ يوه ناطقه پريکړه ده.

دعلماوو په پورته وينا کې له حکومت څخه داسلام جلا کولو کوښښونه له انقلاب سره غدارې او پخپله داسلامي امت په کور يرغل او دټول الجزايري ولس دتوهين مرادف ګرځول شوی (المسلمون ۹مه ګڼه جمادی الاولی ۱۳۸۲هق اکتوبر۱۹۶۲)

په ۱۹۶۵ز کې دپوځي انقلاب راتلو وروسته حواري بومدين واک ته ورسيد، هغه احمدبن بلا قيد کړ، بومدين دبن بلا په پرتله دسياسي ذهن لرلو په ځای زيات د اداروي ذهنيت څښتن و، له دې وجې هغه دعربي ژبې دودې لورته پام وګرځاو، هم يې تعليم ته وده ورکړه، دهېواد د بيا رغونې لپاره يې پلانونه جوړل کړل دبلا په پرتله هغه دنارو وهلو څخه ډډه وکړه، او دهېواد دسياسي

# ګلورینې پاڼې

## کندز ته!

مولوي ولي الله ذهین

دتاریخونو دننګ منار دی کندز
داد رهبر دلاس یاد ګار دی کندز

دپردو سرچې پکې ښکیل شي بېل شي
واورئ دسرو سکروټو هار دی کندز

موړه ګڼلی دی امام د فتحو
هر یو مغرور دښمن ته دار دی کندز

اې دکندز فاتح اتله شنا
دخدای نصرت او داستا زیار دی کندز

ددې وحشي غلام رژیم پر ټنده
له عبرتونو ډک ګذار دی کندز

دتور تمونو په دې توره غیږ کې
اوس راختلی سپین سهار دی کندز

سرخوري ذهینه دادغرب شیطانان
وهر مغرور ته ذلفقار دی کندز

ملغني خیل

## دکابل هیله

مجاهده په زړګي کې مې اوسېږې
مجاهده زما کوګل په تا ودان دی

مجاهده چې دڅمنو ګرد دې ښکل کړم
مجاهده بس همدا زما ارمان دی

مجاهده ستا له رنګي ځوانی جار شم
مجاهده دغه څومره بختور یې

مجاهده حوري هم پرتامیني
مجاهده په بخت دومره زورو یې

مجاهده تور ټوپک دي نظر مه شه
مجاهده ګردنی دي څومره خوند کړي

مجاهده ستا په غاړه امیلونه
کتارونه دمرمی دي څومره خوند کړي

مجاهده پرښتې دي بدرګه کړي
مجاهده پرلپمو مې قدم کېږده

مجاهده پر شمشاد پامیر راجګ شه
مجاهده پراوړو مې قدم کېږده

مجاهده بیرته ما دشملې ګل کړه
مجاهده راشه راشه ما درخپل کړه

مجاهده زه همهغه ستا کابل یم
مجاهده دا ستا ویاړ راسره مل کړه

عرفان الله عرفان

# د کلي مسجد

زموږ دخړ کلي مسجد اوس کنډواله غونډې دی
بس یو محراب یې ښکاري
منبر يي رنگ دی په سرو وينو باندې
اوس یې هادنګې منارې نه وینم
اوس مې ترغوګ دآذان غږنه راځي
نه یې امام نه مؤذن وینمه
نه مقتدي نه یې خادم وینمه
هادمسجدڅنګ کې ولاړه حجره هم ړنګه ده
چې به ډېره پکې همېش وه مسافرطالبان
ټول څنورطالبان
په ونه دنگ لکه نښترطالبان
ورته راتلل به لراوبر طالبان
ورته به شېخ صاحب په مینه سبقونه ويل
چابه واړه اوچابه غټ غټ کتابونه ويل
څومره عجيبه وخت وه
له دې شاو خواکلو به
په ډلوډلوماشومان هم راتلل
تنکولاسوکې به یې
وې رانیولې سپارې دقرآن
چابغدادي قاعده
استاد به ناست وه په صفه دمسجد
ټول ماشومان به ترېنه چارچاپېروه
چابه الف اوچابه با ويلې
چاکلیمې دلا اله ويلې
اوس تشې تورې دي دکلي کوڅې
چې به چېنیان له مدرسې نه ورتلل
دوظېفې لپاره
بس ددکلي په مسجدکې نورڅه نه دي پاتې
يوڅوکتابه په تاخچوکې گردوهلي ایښي
ورباندې ليک دی یویادګار دمسافرطالب جان

مولوي رضوان الله (فیضاني)

# د غزني د زندان

## د ماتیدو په پلمه

پل پر پل ماتېږي هر وحشي زندان
وار دی د بګرام او د څرخي زندان

نه شو نور زغملی د وحشت پنجرې
دا د ستمو او بربریت پنجرې

نور به نړوو هر طاغوتي زندان
ډېرې دي حیرانې زولنې راته

دا د سرو کفارو جېل خانې راته
مونږ ته نه ټینګېږي فولادي زندان

نه کوو بلکل د ولچکو پروا
نشته خیال کې زمونږ د ځنځیرو پروا

تل به ماتوو هر فرعوني زندان
بیا هر یو زلمي کولنګ راخیستی دی

هم یې تبر بېل په څنګ راخیستی دی
نه پرېږدي نور دلته صلیبي زندان

وایي (فیضاني) چې مونږ تکل کړی
مونږ د ابراهیم پر پله مزل کړی
ړنګ به کړو نن هر یو نمرودي زندان

او اجتماعي ترقۍ او پوالۍ خواته متوجه شو، خو هغه دخپل مزاج په وجه او دالجزیر دېپچلو کورنیو ستونزو په درلودو یې داسلامي نړۍ په ستونزو کې زیاته لیوالتیا وانه خیسته، دهغه په وجه الجزایر چې دنورو هېوادو لپاره د سرخارونې، قربانۍ او ددیني غیرت اوحمیت له پلوه رهبر گرځیدای ، دخپل رول په اداء کولو کې پاته راغی.

په الجزایر کې چې کوم سیاسي گوند جوړشوی و، هغه داشتراکیت،قومیت او داسلام شعار پورته کړ، خو په دې لړ کې دسیاسي رهبرانو زیاته توجه داشتراکیت په خواوه او داشتراکیت غوره کولو او هغه ته دترجیح ورکولو په وجه په الجزایر کې هم هغه فکري تضاد او کشمکش پیداشو، کوم چې په نورو اسلامي هېوادو کې ترسترگو کېده، داشتراکي فکر پربنسټ الجزایر دعربي ختیځ له هغو هېوادو سره زیات اړیکي او روابط جوړکړل چې اشتراکي ذهن یې لاره، داشتراکي فکر په وجه یې ددیني گوندونو او او داسلامي برم دبیا احیاء کولو په چارو بوخت ډلو سره یې تصادم رامنځته شو.

د الجزایر په حکومتي او تعلیمي مرکزونو او سیاسي تنظیم کې یواځې هغو خلکوته دکار ورکولو موقع ورکول کېده څوک چې داشتراکي ذهنیت لرونکي ول ولسمشر۔ رابح بیطاط چې دولسمشر۔ بومدین دمړینې وروسته ترڅه مودې ځای ناستی ولسمشرو د سیاسي تنظیم حزب جهة التحریر الوطنی په غونډه کې دا اعلان وکړ:

هېواد کې اشتراکي انقلاب ترهغه بریایتوب نشي۔ مندلی څو چې په کلیدي پوستونو هغه خلک قابض شوي نه وي، څوک چې په اشتراکیت بشپړباور لري ولسمشر۔ پردې ډاډ ځرگند کړ چې داشتراکیت د نه منونکو داغېز او نفوذ باید مخنیوی وکړو او هغوی له صحنې وایستل شي.

تعلیمي نظام چې دیو ولس ذهني تکوین او د یو قوم په راتلونکورهبرانو جوړولو کې بنسټیز رول لري ، دمیثاق ملي په عنوان یې یوتعلیمي نظام پلی کړ،له امله یې دیني تعلیم دعصري تعلیم تابع شو، ددې حالت په راتلو چې کوم نقصان رامنځته شو،

په اړه یې شکوه دالجزایر مفکر شیخ احمد حمانی څوک چې داسلامي ټولنې مشر دی، دحزب جبهة التحریرالوطني په هغه څلورمه غونډه کې چې دولسمشر ځای ناستی رابح بیطاط او نوی غوره شوی ولسمشر الشاذلی هم شریک ول داسې وکړه:

د دیني تعلیم اهتمام په الجزایر کې پخوانۍ سابقه لري، الجزایر ته تل داویاړ ورپه برخه دی چې حضرت عمربن عبد العزیز لس فقهاء دتعلیم لپاره الجزایرته رالیږلي وو، په وړاندې زمانه کې په تلمسان اوبجایه کې داسې مرکزونه وو، چې ورته دذده کړو لپاره له اروپا نه خلک راتلل، اوله دلته څخه اروپا ته علوم وړل شوي ، دجهادي تحریک پرمهال دیني مدرسو خپل مسؤلیت ترسره کړ، او د قوم په روزنه کې مهم روال ترسره کړ، خو دملي میثاق په نامه چې کوم تعلیمي نصاب پلی شوی، دهغه له امله دیني مدرسو ته سخت زیان رسیدلی دی مونږ پوهېږو چې د دې نظام په وجه په غیر دیني مدرسو کې دیني تعلیم رایج شو، او دیني تعلیم عام شو خو دا نتیجه ددې برعکس راووته.

شیخ حماني اندیښنه وښوده چې دڅه مودې نه پس په اسلامي مدرسو کې سبق ویونکي طالبان دلوړو زده کړو څخه محروم پاته وي په پوهنتونونو کې چې ددیني تعلم کوم واجبي نظام دی هغه ددیني ذهن د جوړولو او د دیني علومو د ترویج صلاحیت نلري.ددغه تعلیمي نظام په وجه چې کوم خلک تیاریږي هغوی به دخپل دین او ثقافت سره اشنا نه وي، هغه د دې حالت دمقابلې لپاره وړاندیز وکړ چې اسلامي تعلیم، عقاید، عبادات، معاملات او اخلاق دتعلیم په هره څانگه کې باید پلي شي د ښوونځیو لیسو، او پوهنتونونو په ټولودورو کې دې داسلامي علمو اختصاصي څانگې پرانیستی شي څنگه چې دنورو علومو دتخصص لپاره څانگې پرانیستل شوي ددې لپاره همت پکار دی هغه ټول وسایل دې په کار اچول پکاردي کوم چې دنورو علومو لپارپه کار اچول کېږي.

اسلامي پوهنتون او دیني لیسه دې جوړه شي، دهغو لپاره دې داسې استاذان غوره شي څوک چې اهل وي او دیني شعور ولري.

دقرآن پاک دحفظ لپاره دې جلا عامې مدرسې جوړې شي او قرآن حفظ کوونکي دې تشویق او ترغیب کړای شي.

مدرسو او مسجدونو تـه دې پاملرنـه وشـې دهغـو دلگښـتونو پوره کولو لپاره دچنـدو او مرستو پـه راټولولو لگیـدلی بنـدیز دې لغوه شې څو دغه اداري پخپلو پښو باندې ودریږي.

دعلماوو او ائمـه وو دینـي روزنـه دې و شي څـو لـه بیـرون څخه داستادانو راوستو ته اړتیا نه وې

په تلویزون او راډیو کې دې دیني برنامو تـه وخـت زیـات شي او دهغو لپاره دې دینداره او روزل شوي خلک وگومارل شې.

داسلامي لاربووونو درناوی دې وکړای شي او څـوک چـې یـې تـوهین یـا ورپـورې ټـوکې ټکـالې کـړ ې دهغـوی پرضـد دې سملاسي گامونه پورته شي، په هغو فلمونـو او رآدیـوې پروگرامونـو دې بندیز ولگول شي چې داسلام او د دینـي شـعایرو دتـوهنین مرتکب کېږي..

دشیخ احمـد حـماني لـه غوښـتنو څخـه څرگنـدیږي چـې الجزایر له دیني، تعلیمي او اخلاقي پلوه په کومه خوا روان دی؟ اونوی تعلیمي نصاب چې دراتلونکو رهبرانو دروزنې ضامن دی او رسنۍ چې دنوي نسل ساتنه کوي دهېواد لپاره یې ستونزې پیدا کړیدي، او دراتلونکي لپاره خطرونه زیږوي.

ددې ترخنگ دا خبره هم لحاظول پکـاردي چـې دالجزایـر قیادت په هره شعبه او هره څانگه کې داشتراکیت دنفاذ په لړ کې دهیڅ ډول نرمښت قایل ندی، او هڅه کـوي چـې پـه ټولو برخـو کې خپل اجتماعـي، اخلاقـي اوفکـري معیارونـه دود کړي.اوپـه دې اړه یې رهبران په ښکاره اعلانونه کوي.اگرکه هغوی ددې کـار ترخنگ داسلام نوم هم یادوي خو ښکاره ده چـې دهېـواد دخلکـو او او داشتراکیت درهبرانـو تـرمنځ دیـو فکـري تضـاد پیـدا ېښـت یقیني دی.

دا دنویـو ازاد شـویو اسـلامي او عـربي هېـوادو کـې ملـت رهبران وخت په وخت له اسلام سره دخپل پیوستون اعلانونـه هـم کـوي او هغـوی ددې حقیقـت نـه خبرنـدي چـې اوس هـم اسـلام دخلکو په منځ کې ترټولو ستر ځواک دی او دهغـه دنـوم اخسـتلو پرته دلکونو او ملیونو خلکو په زړونـو حکومـت نشي- کـولی، خـو دهغوی په زړونو کې داسلام مفهوم دهغـه مفهـوم نـه ډېـر جـلا دی کوم چې تراوسه دپخو مسلمانانو کلکـه عقیـده ده، دهغـه نـه مـراد هغه اصلاح شوی (neformed) دین دی، کوم چې دغربي تمدن او امغـربي افکـارو او اقـدارو سره هـم آهنـک کېـدای شي.او دملـت پـالنې سره سـمون لـري، هـم دا راز پـه قـانون جوړولـو او دهغـوی دسیاسي مسایلو او مصالحو په وړانـدې مـزاحم نـه گرځـي پـه دې توگه یو لبناني نژاد عرب مبصر دا رایه اوتبصره ډېـره لـه حقیقـت اومبـا لغـې لـرې نـده چـې دامریکـا پـه یـوې مشهورې مجلـې (muslim wor) کې څرگنده کړې ډاکټر سالم(salem) لیکي:

ددې هدف لپاره ملت پالنې بشپړ اتحاد او اسلام پیدا کـړی دی، خو کوم اسلام چې قومیت خپل کـړی دی، دا هغـه پخـوانی وچ( خشـک) اسـلام نـدی بلکـې یـو بـدل او نـوی اسـلام دی، دجدیدیت په دې تحفه کې چې پـه هغـه بانـدې یـواځي داسـلام پـرده غوړیـدلې دمحمـد صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دقـرآن نـوم بیشـکه یادیږي، دا ددې لپاره چې هرهغه څه لپاره سند ترلاسه شي چې ملت پالان یې غوره کوي.عربي قومیت ته په خلکو کې دمقبولیـت لپاره دهمدې اسلام سره تړون ته اړتیا ده، او دځینو په اند: دعـربي قومیت دنوي جوړښت لپاره داسلام له نامه بایـد ښـه گټـه پورتـه شي دعربي قومیت او اسلام په یوځای کولو سره ښه بریـالیتوب ترلاسه کېـدای شي.( مسلم ورلډmuslim worldمضمون نیشنلزم اینـډ اسـلام nationalism and islam) دچـاپ نیټـه اکتـوبر ۱۹۶۲زدصدق جدید مجلې اخستل شوی نومبر ۳۰مه ۱۹۶۲ز.

نوربیا...

# دشيخ الحديث حضرت مولانا محمد علي رحمه الله

## دژوند حالات او دده پیژندنه

ليکنه : حاجي ظريف

### لنډتعارف اوپيژندنه

شيخ الحديث والتفسير استاد العلماء مولوي محمد علي رحمه الله تعالي عليه ددپيژندل شوي ستر عالم الحاج مولانا محمد رسول رحمه الله زوی او دستر غازي مولوي محمد سليم صاحب لمسی وو نوموړی د۱۳۴۷ هق کال چي د۱۹۲۹ ميلادي کال سره سمون خوري دقندهار ولايت دژړۍ ولسوالي دپاشمول په خوګيانو کلي کي په يوه ديندراه او علمي کورنۍ کي دنيا ته سترګې وغړولې.

### زده کړې يې:

لومړنۍ زدکړې يې لکه صرف ،نحو ،منطق او دنظمو کتابونه پر خپل پلار الحاج مولانا محمد رسول صاحب وکړې چي وروسته يې د۱۳۶۱ هق کال دغزني ولايت ته دعلمي زدکړو په موخه سفر وکړ او دشلګر ولسوالي له ستر عالم مولانا غلام حيدر صاحب څخه يې امور عامه ، قاضي او حمدالله ولوستل او د همدې کال په اواخرو کي يې دهلمند ولايت دساروان کلا پر ستر ، متبحر او منلي عالم حضرت مولانا عبدالقيوم صاحب څخه رياضي او فلکيات ولوستل په ۱۳۶۲هق کال کي يې بير ته پلرني ټاټوبي قندهار پنجوايي ولسوالي ته راغلی او دچلغور پر نامتو عالم حضرت مولانا نيک محمد صاحب او ستر مدرس حضرت مولانا عبدالستار صاحب معاني ،حکمت او رياضي ولوستل چي بيا يې دلوګر ولايت ته سفر وکړ چي هلته يې پر منلي او نابغه عالم محمد مير صاحب حاشيه عبدالغفور او پر ستر عالم مولانا قاضي امان الله صاحب يې کتاب خيالي ولوستل چي بيا يې د۱۳۶۵ هق کال په اواخرو کي ګاونډي هيواد پاکستان دسرحدايالت پلاز مينې پيښبور ته سفر وکړ چي دفنونو پاتې کتابونه يې هلته د هنګو ،مردان ،نرياب دسيمو پر نامتو علماوو ولوستل او په ۱۳۶۸هق کال يې د پيښبور صدر اړوند تاکال سيمه کي دوخت پر مشهور او نامتو عالم او ستر مدرس حضرت مولانا غلام محمد غزنوي رحمه الله موقوف عليه (وړه دوره) وکړه او دممتاز سند يې تر لاسه کړ او په ۱۳۷۰ هق کال کي يې دپيښبور ښار اکوړي خټک په لويه او مشهوره مدرسه (الجامعة الاسلاميه)کي يې پر لوی او نامتو صوفي عالم شيخ المشائخ حضرت علامه عبدالرحمن هزاروي ديوبندي رحمه الله څخه کتب الحديث (لويه دوره) ولوستله او له نوموړي يې دثقه او ثبت په لقب دفراغت او فضيلت سند تر لاسه کړ

### علمي خدمات:

کله چي شيخ صاحب وخپل هيواد او پلار ني ټاټوبي قندهار ته راستون شو نو په ۱۳۷۱هق کال کي يې دقندهار ژړۍ په پاشمول سيمه کي په لمړي کال دخپل بې ساري نبوغ په برکت دمروجه فنونو تر څنګ دصحيح البخاري او صحيح المسلم درس پيل کړ چي ۲۹ کاله يې مسلسل دفنونو او احاديثو درس وکړ چي په دې موده کي يې بې شميره شاګردان وروزل او دفضيلت پګړۍ يې ور وتړلې چي دده دا علمي خدمت دستاينې وړ او له هيچا پټ نه وو چي بيا يې په ۱۴۰۰ هق کال چي کله دروس پلوه کمونيستي ثور منحوس انقلاب راغلی نو مرحوم شيخ صاحب هم دنورو هيواد والو په څير له خپل هيواد نه ګاونډي هيواد پاکستان ته هجرت وکړ او دبلوچستان ايالت مر کز کوټې ښار په شيخ مانده سيمه کي يې دجهادي خدماتو تر څنګ ددرس او تدريس لړۍ همداسي جاري وساتله چي بيا په ۱۴۰۳هق کال کي دچمن ښار ګوټې ته ستون شو او هلته يې دحاجي عبدالصمد په مسجد ګلداره باغچه کي ددرس روانه لړۍ لاهم جاري وساتله.

## ديوې ديني مدرسې تأسيس :

په ۱۴۲۸ هق کال يې دچمن ښار ګوټې په ګلداره باغچه کې په خپل لاس پر ۵۷۶۰۰ فوټه ځمکه ديوې لوېې مدرسې (الجامعة دارالعلوم الربانية الوقفية) بنسټ کيښود چې يوازې پر۳۸۲۸ فوټه ځمکه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په نوم يو ستر جامع جومات ودان دی چې دا مهال دنوموړې مدرسې دارالحديث هم دی چې دلته حضرت شيخ صاحب دژوند تر پايه د ۱۴۳۶هق کال پورې يې پکې درس جاري وساتو

## دنوموړي شاګردان:

شيخ صاحب چې دعمر زياته برخه يې په درس او تدريس کې تيره شوه دشاګردانو کره شميره يې نشي معلوميدلای خو يوازې دفاضلانو هغه شميره چې دسندونو له ليست نه تر لاسه شوې د(۷۵۰۰ )شاوخوا ده چې ۲۵ تنه پکې شيوخ الحديث دي چې دځينو نومونه يې په لاندي ډول دي

پيژندل شوی عالم شيخ الحديث مولوي لاجبر صاحب

شيخ الحديث مولوي نصرالدين هروي

شيخ الحديث مولوي عبدالعلي دهراوودي

شيخ الحديث مووي پير محمد بلوچ قندهاري

شيخ الحديث مولوي محمد علي صاحب قندهاري

شيخ الحديث حافظ مولوي احمد صاحب قندهاري

شيخ الحديث مولوي عبدالرزاق صاحب هلمندي

شيخ الحديث مولوي دادالله صاحب قندهاري

شيخ الحديث مولوي سيف الله صاحب قندهاري

شيخ الحديث مولوي سيد محمد صاحب تيروي

**طريقت او سلوک:** شيخ صاحب رحمه الله چې په خپل ژوند کې ډير محتاط او عزلت خوښونکی کس وو او ښې ساری تقوايې درلوده چې زيات عمر يې په رياضت دنفس او تصوفي وظائفوکې تيراوه نو هم دا لامل وو چې بالآخره په ۱۴۰۳ هق کال يې دچمن له حاجي بابا څخه چې اصلي نوم يې مولوي داد محمد صاحب وو او دقندهار ولايت دډنډ ولسوالۍ دروانې اوسيدونکی وود دڅلورو طريقو نقشبنديې ، قادرېې ،چشتيې او سهروردېې طريقو دخليفه توب اجازه تر لاسه کړه او دطريقت دازرينه لړۍ يې هم همداسي وساتله چې دعمر په اوږدوکې يې په زرګونو مريدانوته يې په نقشبنديه معصوميه احراريه طريقه کې دسلوک او احسان لاره وښوده او هغه يې دخدای معرفت ته را وبلل چې تخميناً د ۳۰ پا شاوخواکې مريدانو ته يې دخلافت سندونه ورکړل او په دې سپيځلې لاره کې يې دارشاد اجازه ورته وکړه شيخ صاحب په حقه سره عاشق رسول وو کله چې به په مجلس کې درسول الله صلی الله عليه وسلم يا دونه وشوه نو ده به ژړل کله چې نوموړې وډاکټرته ورغلی نو هغه ورته وويل چې ستا دستر ګو مريضي له ژړا نه درته پيښه شوې دنورو عباداتواو رياضتونو تر څنګ يې ورځني نوافل ،په کثرت سره صلاة التسبيح او دشپې له خوا دتهجد لمونځ ډير کاوو دهر چا ډوډۍ يې نه خوړله ډير ځله به داسي وو چې خپله وچه ډوډۍ به يې کوره ورسره اخيستې وه او هر چاته به يې دتقوا ،صبر او پرهيز ګارۍ توصيه کوله

## په مقدس جهاد کې ونډه:

شيخ صاحب چې دښه علميت تر څنګ دښې ساري جرئت خاوند وو دروسانو ديرغل په مهال يې خپل څو تنه ملګري لرل او دقندهار ښار ،ژړۍ ولسوالۍ په پاشمول ،سنزري او ارغنداۍ ولسوالۍ کې يې پر روسانو او دهغوی پر ګوډاګيانو بريدونه کول او هر څه يې په خپلو پيسو وو دشر ،فساداو ټوپکسالارانو په خلاف دامير المؤمنين له لوري درا پورته شوي تحريک لمړۍ ملاتړی وو بيا تر امريکا يي نا روا يرغل پورې داسلامي امارت تر څنګ ودريد او په هره جلسه او مجلس کې به يې هر چا ته دا وينا وه چې دامريکا او دراغليو کافرانو په خلاف جنګ فرض دئ اوورسره وجنګيږئ دده په ژوند کې يو دا ارمان وو چې امريکايان په افغانستان کې له ماتې سره مخ شي او يو اسلامي نظام حاکم شي ده به وخپلو زامنو او شاګردانو ته ويل چې که زه وفات وم او امريکا يان مات شول نو زما قبر ته به را ځئ او پر ما به يې دوتلو او ماتې زيری کوئ !

**حرمینوشریفینو ته دحج سفرونه:** شیخ صاحب چي له پیغمبر علیه السلام سره يې ډیره زیاته مینه وه په خپل ژوند کي ۸ ځله حرمینو ته دحج او عمرې دادايني په موخه ولاړ چي په لومړي حج يې د۱۳۸۵ هق کال دموټر په وسیله د ایران ،شام،عراق او کویټ له لارې وکړ چي درې میاشتې يې په بر کي ونیولې چي په دې سفر کي يې دډیرو انبیاوو ،صحابه وو ،مجتهدینو ، أئمه وو ، او اولیاوو او سپیڅلو مقاماتو زیارتونه وکړل او په دې سفر کي يې د فلسطین په بیت المقدس کي لس ورځې اعتکاف هم وکړ چي بیا يې درې حجونه نور هم همدا راز دځمکې له لارې وکړل او لدې بعد يې څلور عمرې وکړې چي آخري هغه يې په ۱۴۲۵هق کال کي وو دپاکستان هیواد له لارې وه ٠

**وفات:** حضرت شیخ صاحب چي دژوند زیاته برخه يې په ناروغي کي تیره کړې دا وخت هم دمریضي دتداوې په موخه دپاکستان کوټې ښار ته ولاړ او په هسپتال کي داخل شو خودا چي دصحت نصیب يې نه وو شوی نو د۱۴۳٦هق کال دڅلورمې خور پر ۱۵ تاریخ دشنبې په شپه هلته په روغتون کي يې له خپل کور او کلي نه لرې دپردیسي په حالت کي خپل روح الله جل جلاله ته وسپارو او په داسي حال کي يې داجل داعي ته لبیک ووایه چي دشهادت کلمه يې په خوله کي وه او له دې نړۍ څخه يې دابد لپاره سترګې پټې کړې (انالله وانا الیه راجعون).

**دده په اړه دعلماوو نظرونه**

دده دعلمیت او بې ساري حافظې په اړه دده یو شاګرد مولوي عبدالرحیم صاحب وايي چي زه يې په ماشوم توب کي شاګرد وم بیا مي دیرش کاله بعد ملا قات ورسره وشو په روغبړ او ستړې مشې ! کي مي ورته وویل چي ودي پژاندلم نو ده راته وویل هوکي عبدالرحیم يې !!

مولوي لاجبر صاحب وايي چي ما په خوب کي ولید چي راته ويې ویل کوم څه چي ما غوښتل نو هغه ټول راته رب العزت راکړل.

**کرامات**

دنوموړي خارق العا ده کارونه بالکل ډیر ول خو دنمونې په توګه يې دلته دیو یا دوو یادونه کوم دده یو مخلص مرید او خادم حاجي عبدالواحد وايي چي دشیخ صاحب ټول ژوند کرامت وو زه به يې څه بیان درته وکړم ډیر ځله به داسي وو چي کله به دلمونځ کولو او جماعت وخت را نیژدې شو نو شیخ صاحب به له وظیفې سر را پورته کړ چي دا به کټ مټ دجماعت وخت و.

**کورنی پس منظر:** دشیخ صاحب رحمه الله له دوو بي بي ګانو ۱۲ لورګانې او ۱۱ زامن وو لکه:

۱ شیخ الحدیث والتفسیر او دده ځی ناستی حضرت مولانا فیض الباري صاحب عم فیضه
۲ الحاج مولوي عبدالهادي صاحب
۳ الحاج ملا محمد ولي مجاهد
۴ الحاج مولوي عبدالعلي صاحب
۵ الحاج مولوي عبدالغني صاحب
٦ مولوي عبدالباقي صاحب
۷ الحاج مولوي عبدالي صاحب عرف خان مولوي صاحب
۸ شهید قاري عبدالباسط تقبله الله
۹ ملا عبدالنافع اخوند زاده صاحب
۱۰ حافظ مولوي عبدالباري صاحب
۱۱ ملا عبدالحلیم اخوند زاده صاحب

دمرحوم شیخ صاحب له وفات نه بعد دده مشر- زوی شیخ الحدیث والتفسیر مولوي فیض الباري عم فیضه چي په ۱۴۱۱ کال کي يې پر خپل پلار مرحوم شیخ صاحب دفضیلت پګړۍ وتړله او لس کاله يې دټولومروجه فنونو درس وکړ او په ۱۴۲۱ هق کال يې دخپل پلار په څنګ کي دنبوي احادیثو په درس پیل وکړ او ۱۵ کاله يې دتدریس دا لړۍ جاري وساتله ،چي دده مرحوم له وفات نه بعد دده دوصیت سره سم دسیمې دعلماوو له لوري داحادیثو په تدریس او طریقت کي دده دځای ناستی په توګه انتخاب شو نوموړی دعلمي تبحر تر څنګ ډیر متواضع او متشرع شخص دی.

# طالبانو

## ۱۴ کاله وروسته ځینې رسنۍ وګواښلې

د تلې پــه
یوویشتمه نېټه وسله والو طالبانو د یوې خبرپاڼې پـه خپرولـو سره دوه خصوصي ټلویزیونونه وګواښـل. دغـه خبرپاڼـه چې د طالبانو د نظامي کمېسیون په نامه خپره شوې وه، په ترڅ کې یې د طلـــوع او یـــک دوو خصـــوصي ټلویزیونونـــو او د دغـــو ټلویزیونونو کارکوونکو او اړوندو کسـانو تـه د مـرګ ګـواښ شوی و. طالبـانو پـه تېـرو څوارلسـو کلونـو کې پـه دغـه ډول خبرپاڼه نه وه خپره کړې.

طالبانو په خپله اعلامیه کې لیکلي وو: «د طلـوع او یـک په نوم ټیلویزیوني چینلونـه هغـه تبلیغـاتي شـبکې دي، چـې پـه افغانستان د کفارو د فکري، کلتوري او تبلیغـاتي یرغـل د پـرمخ وړلو مسؤلیت لري، دغه شبکې د امریکایانو د پراخ ملاتـړ پـه مټ زموږ په دیني او کلتوري اقدارو ملنډې وهي، فحشـاء او بې حجابي خپروي، د ځوان نسل اذهانو ته د بې دینـۍ، بـداخلاقۍ، خشونت، قمار، اختـلاط او بـې حجـابۍ غونـډې مضرـ افکـار پیچکاري کوي او په ځانګړي ډول د جهاد او مجاهدینو پـه اړه له کرکې او بربنډې دښمنۍ ډکه تبلیغات کـوي». طالبـانو داسې مهال دغو رسنیو ته د مرګ ګواښ وکړ چې څو څو ځله په کابل کې د ډېرو مسجدونو امامانو او ځینو اسـلامپالو مـدني فعالانو هم د دغو ټلویزیونونو پر ضد خپل غږونه پورته کړل. د دغو رسنیو پر خپرونو په تېره د اختریزو مېلو پر مهـال پراخـې نیوکې شوې دي؛ خو تر اوسه د دغو رسنیو اړوندو کارکوونکو دخپل کار په دفاع کوم غبرګون نه دی ښودلی.

ولې ګواښ؟

کـابو دوه اوونـۍ وړانـدې، طالبان وتوانېدل چې د هېواد پـه شمال کې د کندز ولایـت مرکـز په بشپړ ډول تـر خپلـې ولکـې لاندې راولي. د کندز د ښار ماته د طالبانو په لاس، دغې ډلې ته په تېـرو څوارلسـو کلونـو کـې کـم سـارې ارزښـت درلود. طالبان لـه ۲۰۰۱م کـال وروسته وتوانېـدل چې د افغانستان د یوه مهم ولایت په مرکز خپل بېرغ ورپوي.

د کندز په مرکـز کـې د جګـړې لـه تودېـدو سره رسـنیزه جګړه هم ګرمه شوه. د طالبانو ضد رسنیو د طالب جنګیالیو پر ضـد رپوټونـه خپـرول. طلـوع پـه دې تبلیغـاتو کـې مهـم رول ولوباوه. کندز لا د طالبانو په ولکه کې و چې یادو رسنیو یې د حکومت له خوا د نیولو خبر خپور کړی و. کله چې د الجزیره شبکې افغان خبریال، ولي الله شاهین تـه طالبـانو اجـازه ورکـړه چې د کندز په چوک کې راپور تیـار کـړي، لـه هغـې وروسـته څرګنده شوه چې کنـدز لا هـم د طالبـانو پـه ولکـه کـې دی. د طالبانو له خوا د طلوع او یـک ټلویزیونونـو تـه ګـواښ شـاید یوازې د دغو رسنیو د وروستیو تبلیغاتو لپاره نه وي. د طالبانو له سقوط او د دغو رسنیو له راپیدا کېدو راهیسې د طالبانو او یادو رسنیو ترمنځ نرمه جګړه روانه وه. طالبـانو ښـایي د دې لپـاره د دغو رسنیو پر ضد توند غبرګون نه ښکاره کاوه چـې لـه رسـنیو سره ټکر یې شاید پر دریځ منفي اغېز وکړي.

د کندز د جګړې په وروستیو ورځو کې طلوع ټلویزیون یو داسې راپور خپور کړ چې په پراخـه کچـه یـې ولسيـ منفـي غبرګـون لـه ځـان سره درلـود. د طلـوع یـو خبریـال لـه کنـدز پوهنتون څخه داسې راپور ورکړ چې ګواکې طالب جنګیالیو د دغه پوهنتون پر ښځینه محصلینو جنسيـ تېـري کـړي. خبریـال داسې اسناد هم وړاندې نه شوای کړای چې ښکاره کـړي جنسيـ تېری شوی. دا راپور په پیل کې ځکه د عـام ولـس زړه تـه ونـه

لوېد، چې د پوهنتون محصلین د اختر د رخصتیو لپاره خپلو کورونو ته تللي وو. په پوهنتون کې څوک نه وو. خبریال هم د شپه غالي له تشو خونو رپوټ ورکاوه. د طلوع ټلویزیون دغه راپور پر طالبانو سربېره د ډېرو لیکوالو او مدني فعالانو تونـد غبرګونونه راوپارول. د ټولنیزو چارو ځینو کارپوهانو وویـل، چې د طلوع دغه غلط راپور د هغو نجونو حیثیت تـه ضربـه رسوي چې پـه یـاد شپـه غـالي کـې اوسېدې. اوس چې ډېرې لیکوال، فرهنګیان او عام ولس د طلـوع د وروستـي راپـور لـه امله پاربدلی، طالبانو هم شاید له همـدې فرصـت څخـه د ګټـه پورته کولو په موخه داسې دریځ نیولی وي. شاید همدا دلیل بـه وي چې په خواله رسنیو کې د طالبانو د دریځ هرکلی وشو.

طالبـانو پـه یـوې کـم سـارې خبرپاڼـه کـې د دغـو دوو ټلویزیونونـو ټـول کارمنـدان خپـل «مشروع نظـامي اهـداف» وګڼل. د طالبانو په خبرپاڼه کې راغلي: «لـه دې وروستـه د دغـو تیلویزیونونو هیڅ کارمنـد، نطـاق، دفـتر، خـبري ټـیم یـا راپـور ورکوونکی مصؤنیت نلري، د اسلامي امـارت نظـامي کمیسیون خپلو ټولو مجاهدینو ته امـر کـوي چـې د یـادو دواړو شیطاني چینلونـو پـه وړانـدې پریکنـده اقـدام وکـړي، نـور د دغـو تلویزیونونو ټول خبریالان او همکاران د دښمنو افرادو په توګه پیژندل کیږي او د دغو تلویزیونونو مراکز، دفترونه او هرځـای استولي شوي ګروپونه نظامي اهداف دي چې مخامخ به له منځه وړل کیږي، زموږ غوښتنه ددې رسنیو له متعلقینو داده چې دیادو شبکو له دفاترو او خبریالانو ځان لري وساتي او ټول روابط دې ورسره قطع کـړي، خلـک دې ددغـو رسـنیو مرکـزي دفـتر او ځانګو ته له ورتلو، په پروګرامونو کې له شرکت او کورونو ته ددغو رسنیو د خبریالانو له وربللو ځان وسـاتي، د نظرخاونـدان دې په خپرونو کې ګډون نه کوي او مسلمان هیـواد وال دې یـې له کتلونه ډډه وکړي او په کلکه دې تحریم کړي.

۱۴ کاله وروسته ګواښ

د طالبـانو حکومـت د امریکـایي یرغـل پـه پایلـه کـې څـوارلس کالـه وړانـدې لـه منځـه ولاړ. کلـه چـې امریکـایي پوځیانو افغانستان ونیـو، د امریکـا سـفارت ځینـې رسنۍ پیـل کړې. د امریکایانو په باور رسنیز او مدني فعالیتونـه کـولای شي په ټولنه کې د بیان ازادي پیاوړې کړي. په دغو رسنیو کې طلوع ټلویزیون او ازادۍ راډیو مخکښې وې. پر دغو رسنیو سربېره، د امریکا سفارت نورو رسنیو سره هم منظمې مالي مرستې لـري. طلوع تلویزیون په ۲۰۰۴ کال کې د امریکـا متحـده ایـالاتو د پرمختیـایي اداری (USAID) پـه مـالي مرسـته او د ۱۸ بهرنیـو مشـاورینو (ځـې اکـثره امریکایـان او اسـترالیایان وه) د مـوبي ګروپ لوی چتر لاندی په کار پیل وکړ. په ظـاهره توګـه مـوبي ګروپ د محسنی کورنۍ (سعد , زید, جاهد او وژمې) لخوا پـه ۲۰۰۳ مـیلادي کـال کـې پـه لـومړي ځـل افغانسـتان کـې خپـل فعالیتونـه پیـل کـړي دی. لویدیځـه رسـنۍ ډیـر وخـت ښـاغلي محسني ته د (Media Mogul) یعنی د رسـنیو د میـدان بـې تاجـه بادشاه لقب ورکوي او دی ښـاغلی پـه افغانسـتان کـې د خلکـو دفکرونو په بدلولو او اداره کې ډیر مهم ګڼي.

که څه هم طالبانو تر دې مخکې په ښکاره د دغـو رسـنیو کارمندانو ته ګواښ نه و کړی؛ خو د دغـو رسـنیو خبریـالانو د طالبانو اړوند د لومړي لاس رپوټونه نه دي خپاره کړي. د یادولو ده چې طلوع او یک ټلویزیونونو ته د طالبانو ګواښ په خواله رسنۍ کـې لـه کـم سـاري هـرکلي سره مـخ شـوی دی. د ځینـو غیراخلاقي خپرونو له امله په ټولنه کې د دغو رسنیو هرکلی نـه کېده.

پرون په کابـل کـې ځینـو خبریـالانو د طالبـانو وروستـۍ پرېکړه وغندله. د ژورنالیستانو د ملي اتحـادیې دوره یـي مشر، فهیم دشتي وویل، که طالبان خپله پرېکړه پلې کړي، لومړی بـه پرې خبري تحریم وضع شي او بیا به د بالمثل چلن کوشش وشي. دشتي ونه ویل چې د طالبانو پر ضد به د خبریالانو بالمثل چلـن څه وي. دوه کاله وړاندې پر ازادو رسنیو د ځار اداري یا «نـی» هم اعلان وکړ چې د طالبانو پر فعالیتونو خبري تحریم لګـوي؛ مګـر د طالبـانو فعالیتونـه لا هـم پـه پراخـه کچـه خپرېدل. وبه کتل شي چې د طالبانو ګواښ د عمل جامه پر تن کوي کنه.

صمیم سعادت

# د بهرنیو ځواکونو په هوایي بریدونو کې

# د ملکي تلفاتو معمې پېښې

په ۲۰۰۱م کال د امریکا په مشرۍ نړیوالو ایتلافي ځواکونو پر افغانستان برید وکړ او د طالبانو واکمني یې ونړوله. له هماغه وخته تر اوسه پورې دا هیواد د بهرنیو ځواکونو تر هوایي بریدونو لاندې دی.

که څه هم امریکا او ناټو د ۲۰۱۴م کال په پای کې په افغانستان کې خپله جګړه په رسمي توګه پای ته رسېدلې اعلان کړه، خو لا هم نړیوال ځواکونه عملا په جګړه کې ښکېل دي او په ځانګړې ډول «هوایي بریدونه» ترسره کوي.

د ملګرو ملتونو د هغې احصائیې پر اساس چې د تېر اګست په میاشت کې یې خپره کړې، د بهرنیو او افغان ځواکونو د هوایي بریدونو په پایله کې د ملکي تلفاتو کچه د تېر ۲۰۱۴م کال په پرتله سږکال ۸۸٪ لوړه شوې.

د امریکا او ناټو ځواکونو د هغو هوایي بریدونو چې په ۲۰۰۱م کال کې یې د کابل تر نیولو وروسته تر اوسه پورې ترسره کړي او ګنو ولسي خلکو ته یې مرګ ژوبله اړولې، د ځینو مهمو پېښو نوملړ په لاندې ډول دی:

۱۰ جولای ۲۰۰۲م: په روزګان کې ۴۷ ملکي وګړي هغه مهال ووژل شول چې امریکایي الوتکو په واده بمباري وکړه.

۲۷۰، ۲۹ اپریل ۲۰۰۷: امریکایي الوتکو د هرات ښار ته څېرمه په زیرکوه سیمه دوه ورځې بمباري وکړه، چې په نتیجه کې یې د ښځو او ماشومانو په ګډون لږ تر لږه ۴۲ تنو ولسي خلکو خپل ژوند له لاسه ورکړ. په دغې بمبارۍ کې ۱۰۰ کورونه هم ونړېدل.

۱۷۰ جون ۲۰۰۷: د هلمند په حیدراباد کلي امریکا هوایي برید وکړ او ۴۵ ملکي وګړي یې ووژل.

۷۰ جولای ۲۰۰۷: د کنړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ په ځانګار کلي کې د امریکایي ځواکونو په دوه جلا جلا بمباریو کې ۳۵ ولسي وګړي ووژل شول. خلکو د ۱۰ وژل شوو ولسي کسانو مړي ښخول چې پر جنازه بیا بمباري وشوه او شاوخوا ۲۵ کسان پکې مړه شول.

۲۳۰ اکتوبر ۲۰۰۷: د میدان وردګو ولایت په جلریز ولسوالۍ کې لږ تر لږه ۱۳ ولسي خلک د ناټو ځواکونو په بمبارۍ کې ووژل شول، چې یوازې ۱۱ تنه له یوې کورنۍ څخه وو.

۶۰ جولای ۲۰۰۸: د ننګرهار په شینوارو سیمه کې د ناټو ځواکونو جنګي الوتکو د واده مراسم په نښه کړل او ۴۷ ملکي خلک یې ووژل، چې اکثریت یې ښځه او ماشومان وو.

۱۴۰ جولای ۲۰۰۸: امریکایي ځواکونو د نورستان ولایت د وانت ولسوالۍ مرکز ته نږدې کلی بمبار کړ، لږ تر لږه ۳۰ ولسي خلک یې ووژل او ۲۵ کورونه او دوکانونه یې ونړول.

۲۲۰ اګست ۲۰۰۸: ناټو ځواکونو د هرات ولایت د شینډنډ په عزیزاباد سیمه کې ۹۰ تنه ولسي- وګړي د هوایي برید په پایله کې ووژل، چې یوازې ۵۰ تنه یې ماشومان وو. په بمبارۍ کې پنځلس کورونه هم ونړېدل.

•٦ نومبر ۲۰۰۸: د کندهار په شاه ولیکوټ ولسوالۍ کې امریکایي ځواکونو د واده په کور بمباري وکړه چې له کبله یې ۴۰ تنه مړه کړل.

•٥ مي ۲۰۰۹: په فراه ولایت کې د امریکایي ځواکونو په هوایي برید کې تر ۱۴۰ زیاتو ولسي خلکو خپل ژوند له لاسه ورکړ، په وژل شوو کې ډیری ښځې او ماشومان وو.

•۴ سپتمبر ۲۰۰۹: جرمني ځواکونو په کندز کې د طالبانو له لوري په یرغمل شوو دوو ټانکرو هوایي برید وکړ او تر ۱۰۰ زیات وګړي یې ووژل، په وژل شوو کسانو کې ۷۰ تنه ولسي- خلک وو.

•۱۸ سپتمبر ۲۰۰۹ :د کاپیسا ولایت په اله سای ولسوالۍ کې د ناټو ځواکونو په بمبار کې لږ تر لږه دوه عام وګړي ووژل.

•۱ مارچ ۲۰۱۱: د کنړ ولایت د ماڼوګۍ ولسوالۍ په ننګلام تنګي کې بهرنیو ځواکونو بمباري وکړه او ۹ ماشومان یې په داسې حال کې ووژل چې د سون توکي (خس او خاشاک) یې راټولول.

•۲۲ اپریل ۲۰۱۱: د خوست په دوه منده ولسوالۍ کې امریکایي الوتکو د سړک جوړونې په یو شرکت هوایي برد وکړ او د دې شرکت ۳ ساتونکي یې ووژل.

•۲۷ مي ۲۰۱۱: د ناټو ځواکونو د هلمند ولایت په نوزاد ولسوالۍ کې بمباري وکړه او ۱۴ ولسي- وګړي یې ووژل، چې ډیری یې ښځې او ماشومان وو.

•۲۱ جون ۲۰۱۱: امریکایانو د هلمند د نوزاد ولسوالۍ د سرغچ کاریز په سیمه کې بمباري وکړه چې له کبله یې ٦ تنو ولسي وګړو خپل ژوند له لاسه ورکړ.

•۲۸ جون ۲۰۱۱: د هلمند ولایت د موسی کلا ولسوالۍ په مزراباد سیمه کې امریکایانو بمباري وکړه، چې په نتیجه کې یې ٦ ماشومان او ۲ ښځې ووژل شوې.

•۲٥ جولای ۲۰۱۱: د کونړ په وټه پور ولسوالۍ کې د ایساف چورلکې ۲ ماشومان او یو ملا امام په ډزو ووژل.

•۱۳ مي ۲۰۱۲: د کونړ ولایت په وټه پور ولسوالۍ کې امریکایي ځواکونو هوایي بمبار وکړ چې په نتیجه کې یې له ۹ تنو ولسي خلکو ژوند واخیست. په وژل شوو کې ٥ ښځې وې.

•٦ جون ۲۰۱۲: امریکایي ځواکونو په لوګر کې هوایي برید وکړ او لږ تر لږه ۱۸ ولسي وګړي یې ووژل.

•۱٥ سپتمبر ۲۰۱۲: د لغمان په الینګار ولسوالۍ کې د بهرنیو ځواکونو په برید کې ۸ تنه میرمنې چې غره ته د خس او خاشاک د ټولولو لپاره تللې وې، ووژل شوې.

•۱۳ جنوري ۲۰۱۳: د وردګو ولایت د سید اباد ولسوالۍ په تنګي دره کې ۱٦ ملکې وګړي د سهار لمانځه پر مهال د بهرنیو ځواکونو په بمبار کې ووژل شول.

•۱۳ مارچ ۲۰۱۳: ناټو ځواکونو د غزني ولایت په سفندي ولسوالۍ کې پر یو موټر هوایي برید وکړ چې له امله یې لږ تر لږه ۲ عامو وګړو خپل ژوند له لاسه ورکړ.

•٦ اپریل ۲۰۱۳: د کنړ ولایت په شیګل ولسوالۍ کې د امریکایانو په بمبار کې د ماشومانو په ګډون لږ تر لږه ۲۰ تنه ولسي خلک ووژل شول.

•۷ سپتمبر ۲۰۱۳: په کنړ ولایت کې امریکایي بې پیلوټه الوتکې د ولسي خلکو په هغه موټر هوایي برید وکړ چې له اسعداباد څخه د ګمبیر سیمې ته روان و. په دې برید کې د ښځو او ماشومانو په شمول ۱٦ تنه ووژل شول.

•۲۳ نومبر ۲۰۱۳: امریکایي بې پیلوټه الوتکو د نورستان ولایت د وانټ وایګل ولسوالۍ په کوڼ کلي کې ولسي کور بمبار کړ او د یوې ښځې او دوه ماشومانو په ګډون یې ۹ ملکیان ووژل.

•۱٦ جنوري ۲۰۱۴: امریکایي ځواکونو د پروان په سیاګرد سیمه کې د ښځو او ماشومانو په ګډون ۱۳ ملکي وګړي په هوایي برید کې ووژل.

•۹ سپتمبر ۲۰۱۴: امریکایي ځواکونو په کنړ ولایت کې ولسي- وګړي په هوایي برید کې په نښه کړل او د ښځو او ماشومانو په ګډون یې ۱۱ تنه ووژل.

•۲۷ سپتمبر ۲۰۱۴: د ننگرهار ولایت په کوټ ولسوالۍ کې د امریکایي ځواکونو په هوایي بمبار کې دوه ښځې ووژل شوې.

•۱۲ اکتوبر ۲۰۱۴: د پکتیا ولایت د مرکز گردیز د نیازیو کلا په سیمه کې بهرنیو ځواکونو بمبار وکړ، چې له امله یې ۷ تنه عام وگړي ووژل شول. په وژل شوو کې یو سپین ږیری او یو ماشوم شامل و.

•۱۰ ډیسمبر ۲۰۱۴: د پروان ولایت په سیاگرد ولسوالۍ کې امریکایي ځواکونو په یو باغ بمباري وکړه چې په ترڅ کې د ښوونځي ۵ تنه زده کوونکي په داسې حال کې ووژل شول چې د کانکور ازموینې لپاره یې تیاری کاوه.

•۲۵ ډیسمبر ۲۰۱۴: د لوگر ولایت په بره کې برک ولسوالۍ کې د بهرنیو ځواکونو په بمبار کې د دوو کورنیو ۵ کسانو خپل ژوند له لاسه ورکړ.

•٦ جنوري ۲۰۱۵: د کونړ ولایت د ماڼوگي ولسوالۍ په شوړیک سیمه کې د امریکا بې پیلوټه الوتکې په برید کې ۲ تنه ولسي وگړي ووژل شول.

•۱۷ جنوري ۲۰۱۵: د ننگرهار د لعل پورې ولسوالۍ په چکنور سیمه کې امریکایي بې پیلوټه الوتکې یو ځل بیا له ۳ ملکي کسانو ژوند واخیست.

•۱۹، ۲۰ فبروري ۲۰۱۵: د امریکایانو په هوایي برید کې د ننگرهار ولایت په خوږیانو ولسوالۍ کې ۹ تنه عام وگړي ووژل شول.

•۲۱ فبروري ۲۰۱۵: د پکتیا ولایت په زرمت ولسوالۍ کې بهرنیو ځواکونو ۵ تنه ملکي وگړي په داسې حال کې ووژل چې په بایسیکلونو کور ته روان وو.

•۷ اپریل ۲۰۱۵: په کنړ ولایت کې یوې ښځې او ۱۱ ماشومانو د هوایي برید له کبله خپل ژوند له لاسه ورکړ.

•۳۰ اپریل ۲۰۱۵: د کندز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ په کلتیپه سیمه کې د امریکایي بې پیلوټه الوتکې برید د ښځو او ماشومانو په گډون له ٦ تنو ولسي وگړو ژوند واخیست.

•۵ جون ۲۰۱۵: د امریکا بې پیلوټه الوتکو د خوست ولایت په علیشیرو ولسوالۍ کې د جنازې مراسم په نښه کړل او ۳۴ ولسي کسان یې ووژل.

•۲۲ جون ۲۰۱۵: د کندز په چهاردرې ولسوالۍ کې امریکایي بې پیلوټه الوتکو په یو مسجد برید وکړ او ۸ ماشومان یې په داسې حال کې ووژل چې د قرآن کریم په زده کړې بوخت وو.

•۳ اکتوبر ۲۰۱۵: په کندز کې د بې پولې ډاکټرانو په روغتون امریکایي الوتکو بمباري وکړه او د ۱۰۰ په شاوخوا کې عام خلک یې ووژل، چې ټول یې ناروغان او د روغتون طبي پرسونل وو.

باید وویل شي چې پورتنۍ احصائیه ټول هغه هوایي بریدونه او بمبارۍ نه رانغاړي چې په تېرو څوارلسو کالونو کې په افغانستان کې رامینځته شوي. دغه احصائیه یوازې د څو هغو مهمو پېښو پر بنسټ ولاړه ده چې چارواکو پرې اعتراف کړی او تر پراخ رسنیز پوښښ لاندې راغلي. همدا راز دغه احصائیه یوازې د مړو او وژل شوو ملکیانو شمېره را اخلي، په هوایي بریدونو کې د ټپیانو او زخمیانو شمېره یې نه ده ذکر کړې.

د هوایي بریدونو او بمباریو په پایله کې د ملکي تلفاتو کره شمېره تر هغې کچې ډېره لوړه ده چې بهرني ځواکونه یې رسما تاییدوي او اعتراف پرې کوي. د هغې سرشمیرنې له مخې چې په دې وروستیو کې د واټسن موسسې لخوا ترسره شوې، راغلي چې د بهرنیو ځواکونو په هوایي بریدونو کې په تیرو څوارلسو کالو کې سل زره ملکي افغانان وژل شوي، چې امریکا او افغان حکومت په خپل وخت کې هر برید په مخالفینو بللي او په کې وژل شوي کسان یې طالبان گڼلي دي.

هېره دې نه وي چې په دې نوملړ کې د هغو ملکي وگړو د وژنې شمېره نه ده شامله چې بهرنیو ځواکونو د ټوپک په ژوندیو مرمیو مخامخ وژلي دي.

# استقبال فراگیر مردم از استهداف شبکه های شیطانی

**نویسنده: سمیع زرمتی**

دو روز قبل امارت اسلامی افغانستان طی نشـر اعلامیهٔ مطبوعاتی موقف گیری تازه خود در برابر برخی از رسانه نماهای تیلویزونی اعلام کرد.

دربخشی از این اعلامیه در پیوند به کارکرد این شبکه های شیطانی ( طلوع و یک ) آمده است : (چینل های تلویزیونی طلوع و یک از شبکه های تبلیغاتی اند که مسئولیت به پیش بردن اشغال فکری ، فرهنگی و تبلیغاتی کفار را بر عهده دارند ، این شبکه ها ، با حمایت گستردهٔ امریکایی ها بر اقدار دینی و فرهنگی ما تمسخر نموده ، فحشاء و بی حجابی را نشر می کنند ، در اذهان نسل جوان بی دینی ، بداخلاقی ، خشونت ، قمار ، اختلاط و مجلس های مختلط وافکار مضر را پیچکاری می کننند و بطور اخص در مورد جهاد و مجاهدین تبلیغات مملو از نفرت و دشمنی عریان را تبلیغات می کنند.

یک مثال واضح نشرات شرم آگین و تبلیغات دروغین این شبکه های شیطانی این است که می گویند که در روز چهارم عید قربان هنگامی که مجاهدین امارت اسلامی مرکز ولسوالی قندوز را تصرف کردند ، خدای نا خواسته بر لیلیه دختران حمله نموده و دختران را بی آبرو کرده اند!

این شبکه های تلویزیونی این راپور دروغین را در حالی بطور مکرر نشر می کنند که مردم و شهریان قندوز این گفته را بشدت رد نموده و با حاضر گرفتن الله تعالی شهادت می دهند که در شب های عید ، تمام ادارات تعلیمی افغانستان و لیلیه اناث قندوز در رخصتی بودند وهیچ کسی در آن حضور نداشت.

به علت اینگونه رفتار های معاندانه و گستاخانهٔ تلویزیون های طلوع و یک در مقابل ملت مجاهد افغان ، امارت اسلامی دیگر این رسانه ها را به حیث رسانه نمی شناسد بلکه آنان را در اهداف نظامی خویش داخل می کند(

داخل نمودن شبکه های طلوع و یک در ردیف اهداف نظامی طالبان نخستین موضعگیری طالبان از نوع خود در برابر رسانه ها است، رسانه های همچو طلوع و یک که زیر چتر دموکراسی وارد شدهٔ غرب برای منافع اشغالگران و رژیم تحت الحمایهٔ شان کار می کنند در امتداد یک و نیم دههٔ گذشته همواره مورد انتقاد مجاهدین و مردم عام بوده اند،لست شکایات ازین رسانه ها بسا طولانی است از ترویج فساد، بی حجابی، اختلاط و بدا خلاقی گرفته تا پخش سریالهای ضد دینی، شرم آگین و خشونت بار که برای ترویج فرهنگ بیگانه ها صورت میگیرد.

درین اواخر همین رسانه ها بشدت در تلاش اند تا آتش نفاق و منازعات قومی ،لسانی و سمتی دربین اقوام متدین و برادر افغانستان شعله ور نمایند، مردم افغانستان خصوصا شهریان کابل بارها خواستار توقف و بازپس گیری جواز کاری این شبکه های تفرقه انگیز شدند اما از جایی که این شبکه ها دست های قدرتمند استخباراتی باخود دارند و از پشتیبانی همه جانبهٔ سفارت های امریکا و انگلیس برخوردار هستند، منتقدان

عامه نتواستند جلو خودسری های این شبکه های مضر را بگیرند.

در همین حال امارت اسلامی یگانه مرجع امید مردم شریف افغانستان بودکه میتوانست دراین زمینه کاری بکند تا جلو فتنه گری ، تفرقه اندازی و دین و فرهنگ زدایی شبکه های متذکره گرفته شود، امارت اسلامی افغانستان همانطور که همیشه امیدهای مردم را برآورده است این بار هم در برابر دشمنان دین و فرهنگ ما قد علم نمود و بسیار با جرات اعلام کرد که دگر نمیتواند فساد و فتنه گری این شبکه های شیطانی را تحمل نماید و پس ازامروز شبکه های متذکره بحیث رسانه ها نه بلکه بحیث دشمنان دین و فرهنگ ما قلمداد خواهند شد و بجزای اعمال مضر شان خواهند رسید.

با آنکه این موقف گیری طالبان غیرمترقبه و نظر به محیط رسانه یی دور از انتظار بود، که باعث شوکه شدن بعضی کارمندان شبکه های شیطانی شد و در جامعه رسانه ای واکنش های مخالف را هم برانگیخت اما در افکار عامه بااستقبال و تاییدی روبرو شد که هرگز انتظار آن نمی رفت.

در روز صدور این اعلامیه و بعد ازآن من صفحه های فیسبوکی رسانه ها افغانستان و جهان را دنبال می کردم تا در پیوند به این موضع گیری طالبان از عکس العمل مردم عامه آگاه شوم، در طی دو روزگذشته که این موقف گیری طالبان خبرساز شده و در شبکه های اجتماعی بحث های داغ را ببار آورده است ما شاهد هستیم که کاربران شبکه های اجتماعی از این موضع گیری طالبان بحدی استقبال نموده که قبلا هیچ اقدام و اعلامیه طالبان همینگونه استقبال عامه را با خود نداشته است

از مجاهدین و مخالفین اشغال گرفته تا مردم عام، کارمندان دولتی و حتی مخالفین عنعنوی طالبان تمام افغانهای که احساس دارند و دلهای شان برای این مردم و کشور می تپند از این موضعگیری طالبان استقبال کردند و آن را یک تصمیم بجا و ضروری پنداشتند.




این جا بگونهٔ مشت نمونه خروار بعضی از اظهارات و تبصرهای مردم عام خدمت تان عرض می نماییم که در شبکه های اجتماعی احساسات خودرا نسبت به اقدام طالبان در برابر رسانه های شیطانی ابراز داشته اند . باید یادآور شویم که این کامنت ها را از صفحه فیسبوکی طلوع نیوز گرفته ایم.

حمید رحیمی : درین ۱۰ سال طالبان معقول ترین تصمیم را گرفتند، چون این رسانه شیطاني را باید قبل مورد هدف قرار میداد.

**Mohammadagha Yazdanpanah**

تلویزیون طلوع و تلویزیون ۱ هر دوفحشی شیطانی ودروغ گو است وباعث همه ناهنجاری ها میان مردم شده کاری خوب میکنند این طالب ها، چون همه جامعه را به فحشا کشیدند این دو تلویزون.

**Sayed Rahman Rohani**

٪۹۰رسانه ها افغانستان اهداف کفارا به پیش میبرد قبلاًباید ریشه یابی میشد.

حالا هم سری وخت است.

قابل یاد آوری میدانم اینکه اشخاص بسیار فهمیده وصاحب رسوخ و علمای دین نیز در بعضی رسانه ها همکاری مي نماید این چنین رسانه ها انگشت شمار است.

**Prince Ghåzñi**

همه این رسانه ها فقط توانسته که برای مردم عزیز افغانستان فلم و سریال های مختلف هر کشورهای بیگانه را به

ما ترجمه نمایدو بس من از طالب میخواهم که بزودی از بین ببرد این رسانه های شیطانی را.

Abdultawab Salahshour

دوستان عزیز من با شما موافق استم. تلویزون طلوع یک جاسوس و کاسه لیس است. نمیدانم از کدام منبع آب مینوشد اما منبع اش این منابع ره بر علیه منافع عقاید دین رسم و فرهنگ وطن عزیز ما افغانستان بکار میبره...ما از این تلویزون کثیف حمایت نمیکنیم.

Naheed Ebad

دلم براي كارمندان طلوع و تلويزيون يك سوخت ، بسيار ترسيدند ،حتمن پياز نوش جان كنيد.

طالبان خوب جاي را هدف گرفته امید تیر شان خطا نرود این دو تلویزیون واقعآ مراکز فساد شده بودند بهتر است خود را اصلاح کنند و دست از پخش فساد و فحشا بردارند.

Nadir Masudi

بهتراست پیش از اینکه تلویزیون طلوع و tv1 به خاك وخون کشیده شود. مسدود گردد واجازه فعالیت برایش داده نشود.

نه تنها طالب بلکه تمام مردم ازمسدود شدناین دو شبکه حمایت میکنند.

Noormohammad Arabzada

تلویزون طلوع دروغ گوی است و خبرنگارهایش شیطان است....

فقط دروغ گفتن وتفرقه انداختن دربین اقوام و توهین برعزت مسلمان ها کاری دیگر ندارد بایداین تلوزیون بندشود

Hamsafar Eshq

تلویزون طلوع را باید آتش زد نه ماه رمضان میگه، نه عاشورا ؟

صدای آذان پخش نداره قرآن پخش نداره شب روز سریال های هندی ترکی....

# د ګل مینه

نظام کندهاری

مونږ د اغزو پر څوکو ځو د منزل مینه کوو
پر سینه سره زخمونه وړو خو د ګل مینه کوو

اول د زړه وینه په جام کي د وفا ورلېږو
بیا د لیلی د سپین رخسار او اوربل مینه کوو

د یار دیدن ته د بارودو په سنګار کي ورځو
غواړو آشنا خو د رقیب د اجل مینه کوو

مینه مو کار مینه مو ژوند مرګ ته هم ځو په مینه
مینه مو خوښه ده دا ځکه چي تل مینه کوو

مونږ رسوو د میني ښار ته قافلې د میني
د اوږدو لارو د دې ستړي مزل مینه کوو

زمونږ په وینه ګډه شوې له ازله مینه
دا چې شیندو یې هره ورځ پر کابل مینه کوو

ټول مینه مینه یو نظامه زمونږ مسیر د میني
که اَشِدّاء یو پر پردو خو پر خپل مینه کوو

# مدرسه وپيژنئ!

عاکف مهاجر

څو ورځې وړانــدې بی بی سی راډيو راپـور خپور کړ، چې مدرسه يې پکې پـه نـاوړه رسـم انځور کړې وه، هغوی د مدرسې په اړه سم مالومات(معلومات) ياخو لري نه، او يا په قصدي توګه مدرسه وخلکو ته په بده بڼه ور پېژني، ترڅو خلک له ديني زده کړو، په بله مهار کړي. زه بـه پـه لنډو کې مدرسه در و پېژنم، او د هغې اصلي څېره بـه درتـه څرګنـده کـړم .

مدرسه هغه کور دی، چې پـه هغـه کـې د الله معجز کتـاب(قران) و زده کونکو ته ور ښـوول کـېږي، کـوم چـې د الهي پېرزوينـو، ډاډ، د ملائکه وو د نزول او د الهي يادګېرني او... لامل کېږي، لکه چې نبي عليه السلام مبارک فرمايې:(ما اجتمع قوم فى بيت من بيـوت الله يتلـون کتاب الله ويتدارسونه الانزلت عليهم السکينه وغشيتهم الرحمة وحفـتهم الملئکة وذکره الله فيمن عنده....).

مدرسه هغـه ديـنـي پـوهنځی دی، چـی د نـاپوهي تورتموتـه پکې د رڼو مشالونه په څېر زلمکي روزل کېږي، کوم چې ملائکـه يې تر پښو لاندې خپل نوراني وزر غوړوي . مدرسه له اصحاب صفه وو نه راته په ميراث پاتې ده، که څه هم د څونوالي او څرنګوالی له امله به ور سره توپير لري. له مدرسی نه د امام "ابوحنيفه، امام شـافعی، امام مالک، امام احمد بن حنبل، امام بخاری، امـام ترمـذی، امـام مسـلم - رحمهـم الله- پـه څېـر ديـن پوهـان را ووتي، کـوم چـې ټولـه اسلامي نړۍ يې په نبوي زرينو وړانګو پوښلې. د مدرسې پـه غېږکـې هغه څوک روزل کېږي چې د پيغمبري وراثت وياړ لري . څوک چې حقه اسلامي عقائدو ته ژمن پـاتې شـوي، هغـه مدرسـه دامـن، يمـن، پـوهي او سـوکالۍ پـه نامـه پېژني . موږتـه سـتر لارښـود هـم داسي سپارښتنه کړې: (کن عالما اومتعلما اوخادما اومحبا ولاتکـن خامسـا فتهلک) ژباړه: يا د مدرسې ښوونکی ياېې زده کونکی ياېې خـدمتګار ياېي مينوال شه، اوپنځم مه کېږه ورنه هلاک به شې . لقمان حکيم- رحمه الله- دمدرسې په بڼ کـې د روزل شـوو طوطيـانو پـه اړه داسي سپارښتنه کړې:(يابنی لحوم العلماء سـموم مـن شـمها يمـرض ومـن اکلها يموت ولوبعدحين).

ژباړه ای زويکيـه دعلماوو غوښـې زهـردی چـاچې بـوی کـړې (خبرې يې پسې کولې) مريض کېږي، او کـه چـاخوړې (ضرر يـې ور ورساوه مړکېږي) اګرکه څه وخت وروسته وی . مدرسه هغه روزنځی دی، چې ځوانانو ته له اسلامي دين نه د دفاع او حمايت، د پرديـو د يرغل او استعمار د مخنيوي لارې چارې ښوول کېږي . دمدرسـو لـه غېږې نه راوتلي ځوانان د ديـن دښـمنو څېـرو هـر رنـګ دسيسـې او ناوړه پلانونه شنډوي، او په وړاندی يي کلکه مبـارزه کـوي. مدرسـې دتروريزم مرکزونه نه، بلکې دامن هوساينې مرکزونه دي، مدرسـې د ترور د ودې نه، بلکـی دتروريـزم دمخنيـوی درس ورکـوی . مدرسـه مونږ ته دقراني ايتونو په رڼا کې له ناروا قتل او وژنو نه په کلکه د نه کړنو سپارښتنه کوي، دبېلګې په توګه به له الهي سپارښـتنو نـه څـو سپارښتنې د خپلې مدعی د تائيـد لـه پـاره راوړم، الله پـاک فرمـايي: {ومن يقتل مؤمنا متعمدا فجزائه جهنم خالدا فيها وغضب الله عليه ولعنه واعدله عذابا عظيما} ژباړه: څوک چې يومؤمن مسلمان بې لـه کوم جنايته په قصدي توګه و وژني نو جزا به يي جهنم وي د تـل لـه پـاره، او د الله تعـالی لـه لـوری پـرې غضـب نـازلېږي، او هغـه - جل جلاله- پرې لعنت وايي، او هغه- جل جلا لـه- و ده تـه لـوی عـذاب تيار کړی.

او فرمـايي: (وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا) ژبـاړه: او تاسو مه نږدې کېږئ و زنا ته، بېشکه زنا بد عمـل او بـده لاره ده. که په ياد ايت عمل وشي، نو د فحشا دريڅـه بنـدېږي . او فرمـايي: (وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَـاقْطَعُوا أَيْـدِيَهُمَـا...) او غـل سـړی، او غلـه ښځه لاسونه يې کاټ کړئ. که دا سپارښتنه عملي شي، نو چور او چپـاول به د نړۍ له غولي کډه کړيوه

مدرسې د سلام د حريم په ساتلو کې زياته ونډه لري، مدرسې داسلامی ټولنې د دينـي نواميسـو، ارزښـتونو د حمايت مراکـز دي، زمـونږ هوسـاينه او سـعادت پرمختـګ دمدرسـوسره پـه محبـت اوهمکاری‌کې ده نه په دښمني او ورته دتروريزم په نسبت کولو کې .ځکه نو بايد د مدرسو دپرمختګ فکروکړو نه يي دورانولوله سرمدی ذات نه هميشه دمدارسو د لا پياوړتيا په هيله يم.

زه رحمن حلقه بګوش دهرعـالم يم
که اعلی دي که اوسط دي کـه ادنی

مرکه کوونکی : حبیب مجاهد

# د غزني زندان د ماتېدو په اړه

# د همدې ولایت له جهادي مسؤل سره مرکه

درنو لوستونکو!

د روان ۲۰۱۵ میلادي کال د سبتمبر میاشتې په ۱۴ شپه د اسلامي امارت قهرمانو مجاهدینو د یوه خاص تاکتیکي برید په پایله کې دغزني ولایت مرکزي محبس مات کړ او سلګونه زنداني مجاهدینو ته یې له زندانه د وتلو لاره هواره کړه.

د غزني د زندان ماتولو پیښه د عزم عملیاتو په لړ کې یوه مهمه کارنامه وه چې په اړه مو یې د غزني ولایت جهادي مولوي محمد قاسم صمیم مجاهد راغبرولی هیله ده مرکه یې راسره ولولئ .

**پوښتنه :**

محترم د غزني ولایت جهادي مسؤل مولوي محمد قاسم صمیم مجاهد صاحب ! له هرڅه وړاندې که د غزني د زندان په اړه معلومات راکړئ چې دا څنګه زندان دی او چیرته یې موقعیت لري؟

**ځواب :**

نحمده و نصلی علی رسوله الکریم امابعد : پس له سلام او احترام څخه به ستاسو د پوښتنې په ځواب کې ووایم چې د غزني ولایت مرکزي محبس د غزني ښار په جنوب شرق کې د ده خدایداد په سیمه کې موقعیت لري چې د ولایت له ودانۍ څخه به دوه کیلومتره لرې وي، دا زندان چې یو له مشهورو محابسو څخه دی امنیت یې ډیر ټینګ ساتل کیږي او په شاوخوا یې ګڼ شمیر امنیتي پوستې راګرځیدلي دي .

**پوښتنه:**

د غزني د محبس ماتولو لپاره څرنګه ترتیبات ونیول شول او څرنګه یې پلان طرح شو ؟

**ځواب:**

ددې محبس د ماتولو لپاره موږ له وړاندې اراده درلوده، شاوخوا لس یوولس میاشتې وشوې چې موږ په دې پلان کارکاوو او په تدریج سره مخکې تلو تردې چې د پلان ټول ترتیبات نهایي او بالاخره په بریا سره تطبیق شو اوپه پایله کې یې شاوخوا ۴۵۰ تنه بندیان ددښمن له منګولو راخلاص کړای شول.

پلان داسې نیول شوی و، چې په عملیاتو کې به ۱۰ تنه فدایان او ۳۰۰ تنه نور تکړه او تجربه کار مجاهدین برخه اخلي، له دې جملې فدایان او ۴۰ تنه مجاهدین هغه و،چې د زندان دماتولو له رازه له وړاندې خبر کړای شوي وو، ځانګړې لاربښوونې ورته شوي وې او ددوی وظیفه دا

وه چې په مشخص ډول به په زندان برید کوي، هلته به ننوزي او زندانیان به له پنجرو څخه راوباسي .

پلان داسې و چې لومړی به دوه تنه فدایان چې د ۸۲ ملي متري توپ ښه تعلیم یې درلود، دشپې په یوه بجه د زندان نظام قراول کې د پیره دار په مورچه او یوه څارونکي برج باندې د هشتادو برید کوي، ورپسې متصل به موټر بم چې ۱۰ ټنه انفجاري مواد په کې ځای شوي و، او زندان ته ډیر نږدې رسول شوی و، هغه به راځي او د زندان په دروازه کې به انفجار کوي، له دې سره هم مهال به نور مجاهدین د زندان په شاوخوا کې په ټولو پوستو بریدونه پیلوي او هغوی به مصروف ساتي، د موټر بم له انفجار وروسته به ۴۰ تنه مجاهدین او څو تنه فدایان چې زندان ته نږدې په یوه نهر کې انتظار و د زندان دراوزې ته ځان رسوي،که ددښمن کوم مقاومت پاته و هغه به له منځه وړي او کنه مخامخ به زندان ته ننوځي بندیان به راوباسي او زندان ته نږدې درول شویو لویو موټرو ته بې انتقالوي تر څو له هغه ځایه د غزني ولایت د اندړو ولسوالۍ ته دمجاهدینو سیمې ته ورسول شي.

پلان لکه څنګه چې ترتیب شوی و همداسې عملی شود نظام قراول له ویشتلو او موټر بم له انفجار سره هم مهال عملیات پیل شول، دزندان په شاوخوا کې ۷ پوستې دغه راز د غزني ښار ته نږدې د قلعه قاضي پوسته ، د دهیک د سیلمانزو پوسته، د زرګر پوسته د ملانوح بابا د سیمې پوسته په یو وار تربرید لاندې ونیول شوې،د غزني په قومندانۍ ، د چټک غبرګون په قطعه او پي آر ټي باندې هم توغندیز بریدونه پیل شول، په دې ډول دښمن هر ځای تر برید لاندې ونیول شو او هیڅ خبر نه شو چې اصلي هدف څه او چیرې دی، په همدې حال کې د زندان لپاره ټاکل شوي مجاهدین چې له ۹ تنو فدایانو سره یې شمیر ۴۹ تنو ته رسیده په زندان ورغلل، یوه فدایي د زندان د مدیر په دفتر کې ځان منفجر کړ او بل د شپې په تیاره کې د لویې محکمې پنجرې سره خپل واسکټ والوځاوه، یو بل تن فدایي چې سهار شهید ومونډل شو،واسکټ یې نه و منفجر شوی داسې معلومیده چې په جګړه کې لګیدلی وي او یا هم خپل لاسي بم ورباندې چاودلی وي، په دې جګړه کې ټول همدا څلور تنه فدایان چې یو په موټر بم کې و شهیدان شول، مجاهدین زندان ته ننوتل لومړی یې مجاهدین بندیان راوایستل او انتقال کړل او بیا څرنګه چې په جنایي بلاک کې ګڼ شمیر مضر اربکیان هم بندیان و هغوی یې هم ونیول او د بندیانو په حیث یې له ځان سره راوستل،په دې ډول مجاهدینو ټول بندیان به ځانګړو موټرو کې په پوره ډاډ سره د غزني د شلګر کلاخیلو بازار ته راوړل او له هغه ځایه یې بیا د د ګیرو ولسوالۍ ته انتقال کړل.

**پوښتنه:**

په دې جګړه کې د زندان له ماتولو پرته دښمن ته نور کوم زیانونه ورسیدل او د مجاهدینو تلفات څومره وو؟

**ځواب :**

د زندان په شاوخوا دعملیاتو له پیل سره د غزني له پي آرټي او د چټک غبرګون له قطعې څخه کومکي عسکر سیمې ته را روان و خو په لاره د مجاهدینو له کمین سره مخامخ شول او تلفات ورته ورسیدل یو بل ځای ددښمن یو رینجر په ماین والوزول شو، له دې پرته په یادو ټولو پوستو د عملیاتو په ترڅ کې دشمن ته تلفات ورسیدل، د دهیک د سلیمانزو پوسته چې په یوه حاکمه نقطه باندې پرته وه او ډیره سیمه یې له تهدید سره مخ کړې وه په همدې شپه فتحه شوه اوڅوتنه عسکر په کې ووژل شول.

د زندان له دروازې سره د موټر بم په برید کې ددښمن تر څلویښتو ډیر عسکر له منځه لاړل ، په دې جګړه کې زموږ څلور تنه فدایان شهیدان شول په نورو مجاهدینو

کې یوازې دوه تنه ډېر سرسري ټپیان شول چې یو د مټ په پسته کې لګیدلی و او د بل د مزله په وخت پښــه اوښـتې او بې ځایه شوې وه، نور موږ هیڅ تلفات نه درلودل .

**پوښتنه:**

له زندان څخه راخلاص شوي بنـدیان څـوک و او آیـا دښمن خو به یې بیرته په نیولو نه وي توانیدلی؟

**ځواب :**

له زندان څخه راخلاص شـوي اکثره مجاهـدین وو ، ځیني داسې کسان هم و چې بالفعله مجاهدین نــه و خــو د مجاهدینو همکاران، خپلوان او یا خوخواږي وو چې دښــمن د پیسو په خاطر بندیان کړي و، تاسو ته به معلومه وي چې ددښمن رشـوتخورو قاضـیان او څـارنوالان اوس د خلکـو بندیانولو ته د یوه کاروبار په حیث ګـوري مظلـوم خلـک نیسي او بیا یې د پیسو په مقابل کې خوشې کـوي ، خـو لله الحمد د غزني په پیښه کـې مجاهـدینو سـلګونه مظلـوم او مجاهد هیوادوالو ته ددښمن له اذیت څخه نجات ورکړ.

په راخلاص شـویو مجاهـدینو کـې زیـاتره د غـزني ولایت و، دغــه راز د پکتیــا، پکتیکـا، زابـل او میـدان وردګ ولایاتو بندیان هم و، چې ټول خپلو سیمو ته واستول شـول او دښمن د هیڅ تن په بیرته نیولو نه دی توانیدلی .

**پوښتنه:**

په غزني کې د زندان په ماتیدو سربیره دکال په اوږدو کې څو نور هم ستر جهادي کارونه ترسره شول که د هغـو په اړه معلومات راکړئ ؟

**ځواب :**

هو ، په غزني کې د سږکال د عزم عملیاتو په لړ کـې د پام وړ جهادي کارونه ترسره شوي دي، چې په څـو برخـو یې ویشلی شو، مجاهدینو ددښمن ستر عملیات ناکام کـړي، ددښمن پوستې یې نیولې او یایې دښـمن تـه درانـه تلفـات اړولي دي.

سږ پسرلی دښمن لومړني عملیات د غزني پـه دهیـک ولسوالۍ کې پیل کړل،چې له دریو لوریو یې دې سیمې تـه قوا راوستله په دهیک کې ۷ ورځې جنـګ روان و بـالاخره ددښمن عسکرو د سختو تلفاتو له منلو وروسته لــه سـیمې پښې سپکې کړې او عملیات یې ناکام شول .

له دهیک وروسته یې د غزني په اندړو ولسـوالۍ کـې پراخ عملیات پیل کړل، دلته هم سخت مقاومت ورسره وشو۴ ټانګونه او یورینجر یې له منځه لاړل پیاده عسکرو تـه یـې هم درانه زیانونه ورسیدل او بالاخره یې پرته له کومې لاسته راوړنې د عملیاتو پای اعلان کړل او ناکام ستانه شول .

د اندړو ولسولۍ له ناکامۍ ۱۵ ورځې وروسته یـې د مقر، ګیلان او ناوې په ولسوالیو کې خورا ستر عملیات پیـل کړل، په دې عملیاتو کـې ددښـمن هـدف داو چـې دنـاوې مفتوحه ولسوالي بیرته له مجاهدینو ونیسي۔په دې سـیمه کې مجموعا شل ورځې جګړې دوام وکړ، دښمن خپـل ټـول زور وکاراوو خو د هیڅ سیمې په نیولو بریالی نه شول سره له دې چې د ناوې ولسوالۍ مرکز یې د لنـډې مـودې لپـاره ونیو خو دلته وربانديې درنې چاودنې وشوې سـخت تلفـات ورته ورسیدل او بالاخره مجبور شو چـې لــه کـومې لاسـته راوړنې خپلې قواوې له سیمې وباسي او ناکـام سـتانه شي، ددښمن د دغو سترو عملیاتو مقابله او ناکامول بې له شـکه د سږ کـال یـوه مهمـه کارنامـه وه چـې د غـزني ولایـت مجاهدینو ترسره کړه .

سږکال د غزني ښار ته څېرمـه د خوګیـاڼو ولسـوالۍ مکمله فتحه شوه چې دا لــه رشـیدانو، زنـه خـان او نـاوې وروسته څلورمه ولسوالي وه چې مکمله مجاهدینو تصرف کړه ، د واغز او ګیرو په ولسوالیو هم بیا بیا عملیات تـرسره

شول الله تعالی ته امید دی چې دغه ولسوالۍ به هـم فتحـه شي.

په دې سربیره په تیرو څو میاشتو کې پـه گـیلان، آب بند، قره باغ، اندړو او دهیک کې ددښمن گڼـې پوسـتې هـم فتحه شوي دي چې له دې جملې د قره باغ د شـاغلو مهمـه قرارگاه هم ده ،په اندړو کـې د اربکیـانو مهـم او سرکـرده مشران له منځه تللي او اوس یي ځواک ډیر کمزوری شـوی دی د غزني په ښـار کـې ۴۵ هـدفي بریدونـه شـوي چـې ددښمن مهم کسان په کې له منځه تللي په دې ټولو عملیـاتو کې له دښمن څخه لوی مقدار مهمات او وسلې هـم غنیمـت شوي دي .

دغه راز له پسرلي راپـدیخوا تـر اوسـه پـورې د څـو میاشتو په اوږدو کې د غزني په بیلابیلو سیمو کې ۱۲۰ تنه ددښمن عسکر او اربکیان د حقیقت په درکولو ددښـمن لـه صفوفو راوتلي او د دعوت او ارشاد کمیسیون له لارې ورتـه د پښیمانۍ په اظهـار او تضـمین ورکولـو سره د سر امـن ورکړل شوی دی .

**پوښتنه:**

او په پای کې که څه پیغام لرئ هیله ده راسره شریـک یي کړئ موږ به یي تر لوستونکو په رسـولو کـې همکـاري وکړو.

**ځواب:**

پیغام مې مجاهدینو تـه دادی چـې داسـلامی امـارت متحد صف د ځان لپاره یو غنیمت او دالله تعالی لوی نعمـت وبولي، که دغه متحد صف نه وای نو هیواد به مو بیا داسـې له گډوډیو او فتنو سره مخامخ و لکه په پخواني جهـاد کـې یي چې تجربه لرو.

نو د خپل دین او جهـاد پـه خـاطر او ددې رنځیـدلي اولس او هیواد په خاطر چې د جهاد ارمانونو او یوه شرعـي






متحد او سوله ایز نظام تـه  منتظـر دي مجاهـدین بایـد د تفرق او اختلاف له ټولو فتنو څخه ځان لرې وسـاتي، هغـه که د امارت په داخل کې ځیني کسان اختلاف ته لمن وهي یـا د بېل جهادي صف دعوت کوي او یـا کـه دداعـش غونـدې بهرنۍ فتنې دي.

دا چې زموږ دښمنانو دغـه راز خـبرو تـه ډیـره هـوا ورکوي روزانه  په راډیوگانو کې تـرې یادونـه کـوي او پـه اصطلاح له ب څه بلا جوړوي  له همدې ځایه باید پوه شـو چې دا د اسلام او جهاد په خیر نه دي، نوځکـه خـو زمـوږ کافر او فاجر دښمنان ورته تبلیغاتي کمپاین چلوي .

له افغان اولس څخه مـې غوښـتنه داده چـې د خپلـو مجاهدینو ټینگ ملاتړ وکړي جهاد یوه الهي فریضه وبـولي او یوازې د طالبانو دنده یي ونه بولي ان شاءالله نـور هغـه وخت رانږدې دی چې دښمنان مات او پـه هیـواد کـې مـو اسلامي نظام حاکم شي.

وماذلک علی الله بعزیز

مرکه کوونکی: حبیب مجاهد



# اشتباه بزرگ

## در آزمون شکست؟!

لیکوال: ابوصهیب حقاني هراتي

بعد از آنکه رئیس جمهور امریکا تحت فشار جنرالال جنگ طلب خود پذیرفت که در جدول کشیدن نیروهای خود از افغانستان تجدید نظر کرده و بجای بیرون کشیدن کل نیروهای خود تا پایان سال ۲۰۱۶ م، ۵۵۰۰ تن دیگر آنها را بخاطر تشویق روحیه و تقویت اردوی مزدور افغانستان نگاه دارد؛ این مسئله یکبار دیگر نشان داد که بارک اوباما و دولت امریکا بازهم مثل گذشته در آزمون افغانستان یک تصمیم غلط و نادرست اتخاذ کرده و بجای عبرت گرفتن از تاریخ شکست به تمدید شکست تن داد و در حالیکه از همین حالا کاملا برای امریکا معلوم است که جنگ افغانستان یک جنگ بی فایده و بی دستاورد برای دولت آن کشور است و هرگز نه فعلا و نه در آینده به نفع امریکاست؛ اما از سر جهل و لجاجت تن به تداوم این ذلت داد تا کشورش شاهد آثار منفی بیشتری از ناحیۀ جنگ افغانستان باشد.

در جنگ افغانستان که برای امریکایی ها طولانی ترین جنگ در تاریخ این کشور محسوب می شود این تصمیم امریکا هرگز از سر شوق و رغبت نبوده است و به گزارش روزنامه های خارجی این یک تصمیم دشوار بود که امریکا در موقعیت کنونی اتخاذ کرد؛ به نقل از آزادی در بخش بررسی مطبوعات جهان: "روزنامۀ "نیویورک تایمز" چاپ امریکا تصمیم اوباما در مورد افغانستان را دشوار خوانده است و گفته است که اوباما در کریسمس گذشته خوشحالانه گفته بود که امریکا مصئون تر شده چون افغانستان فرصت بازسازی یافته و دیگر مکان برای حملات تروریستی نخواهد بود؛ اما اکنون خلاف سخنان گذشته، اوباما مأموریت امریکا در افغانستان را تمدید کرد؛ یعنی تحلیل روزنامه این است که هر چند طرح جدید اوباما احتمالاً نخواهد توانست افغانستان را در مسیر ثبات قرار دهد، ولی او چارۀ دیگر نداشت."

فکر نمی کنم تبصرۀ نیویورک تایمز نیاز به وضاحت داشته باشد و در کل، این مسئله را روشن ساخت که امریکا وقتی ضُعف ادارۀ اجیر کابل در تحولات اخیر مخصوصا شمال افغانستان را دید و اینکه بار بار ادارۀ مزدور کابل چه از طریق عبدالله در حاشیۀ نشست سالانۀ سازمان ملل، و چه از طریق اشرف غنی در هنگام شکست نظامی عساکرش در قندوز و چه از طرف جنرالان قدرت طلب وجناح های جنگ طلب در داخل امریکا مجبور شد بر خلاف میل باطنی این تصمیم را بگیرد و در عین حال می دانست که این

تصمیم جز ضرر و زیان برای امریکا و تبعات منفی آن بر این کشور هیچ منفعتی دیگر نداشته؛ و همین طور این تصمیم هیچ تغییری در روال رو به ضعف ادارۀ دست نشاندۀ کابل هم نخواهد آورد؛ ولی به هرحال این تصمیم را گرفت تا چند صباحی بیش، مزدورانش در افغانستان خوشحال باشند.

عامل مهم دیگری که امریکا را بر آن داشت تا نسبت به وضعیت ادارۀ دست نشانده اش در کابل، از شفقت و مهربانی کار گرفته و بخاطر بلند بردن روحیۀ از دست رفتۀ آنها، تصمیم به تمدید حضورش بگیرد؛ این بود که گویا امریکا قصد دارد از تکرار اشتباه خود در عراق درس گرفته و به اصطلاح جلوی سقوط و فروپاشی ادارۀ مزدور کابل را حداقل در کوتاه مدت بگیرد که این عامل در اکثر محافل خبری و تحلیل وتبصره های روزنامه ها و رسانه های خارجی و داخلی به عنوان مهم ترین دلیل حضور بیشتر امریکا در افغانستان یاد می شود؛ در حالیکه اشتباه محض امریکا همین جاست که فکر می کند افغانستان عراق دوم است و نیروهای مزدور افغانی از ارتش عراق قوی تر است؛ در حالیکه طبق آمار مطبوعات وابسته به اشغالگران؛ مثل روزنامۀ فایننشل تایمز آمده: "نیروهای امنیتی افغانستان در حملات طالبان تلفات سنگین را متحمل شده اند، چنانچه که در جریان امسال بیش از پنج هزار نیروی امنیتی افغانستان کشته شده اند" آیا با این گراف بالا از تلفات، چگونه می شود روی قوت و توانایی نیروهای مزدور افغانستان حساب کرده و آنها را نسبت به نیروهای عراقی تواناتر دانست؟

و آیا مگر نیروهای اجیر افغانستان، بدون کمک زمینی و هوایی نیروهای اشغالگر ناتو و امریکا پس از تصرف شهر قندوز به دست طالبان، قادر شدند به تنهایی این شهر را از تصرف مجاهدین درآورند؛ هرگز نه و دنیا دید که قوای افغانی بدون پشتیبانی هوایی و زمینی قوت های اشغالگر خارجی توان بازپس گرفتن حتی یک وجب خاک از دست رفته را، نداشتند؟!؟

جدای از باور دشمنان نسبت به تمدید اشغال توسط امریکا، نباید تحرکات رو به افزایش روسیه در منطقه را نادیده گرفت؛ جایی که برای امریکا هم ارزش حیاتی دارد و امریکا هرگز این را تحمل کرده نمی تواند که بعد از آنهمه مصارف هنگفت جنگی در اشغال افغانستان و عراق، میدان را به رقیب دیرینۀ خود (روسیه) واگذار کرده تا آن کشور از فرصت به دست آمده نهایت استفاده را برده و از جنگ زیان بار امریکا در خاورمیانه، علیه خود امریکا استفاده شده و بیش از پیش اسباب شکست و رسوایی امریکا در جهان فراهم شود؛ شاید یک دلیل عمدۀ امریکا که تصمیم به تمدید اشغال در افغانستان گرفت و امریکایی ها کمتر آن را برملاء می سازند ترس شان از روسیه است که گویا اوضاع کنونی در آسیای میانه به نفع روسیه در جریان است؛ ولی اگر همین عامل، باعث ماندن بیشتر امریکا در افغانستان شده باشد هم، اشتباه محض است چون روسیه هرگز نخواهد توانست دومرتبه به آن قدرت قبلی اش در منطقه تبدیل شود؛ گرچه شاید بطور موقت روسیه یک جنگ تبلیغاتی و پر طمطراق راه اندازی کند.

به امید روزی که امریکا شکست خورده و ذلیل خاک افغانستان را ترک گفته و نظام مستقل اسلامی حاکم شود. ان شاء الله تعالی

# څکند ز فتحا

شهید زوی

## پر روغتون خونړۍ بمبار او د دښمن پوچ تبلیغات

پـه سمت شمال کې د تاجکستان سره پـه پوله پـروت د هېواد پنځم لوی ښار باندې د اسلامي امارت د مجاهدینو کامیاب برید ؛ فتحه او د زندان نه یې د کـابو ۵ سوه بندیانو ازادول چې اکثریت یې د ځـایې مجاهـدینو و ،نړۍ ډېره حیرانـه کړیـده ؛ ډېر خلک دا ګومان کوي چې ګیني دا هر څه ناڅاپه رامنځته شویدي ؛ خو څوک چې په ټول هېواد کې په ټولیزه توګه او په سمت شمال کې پـه ځـانګړې ډول د طالبانو د نیو ستروفتوحاتو نه سم خبر دي او د نړیوالـو رسنیو په دروغو باور نـه کـوي هغـوئ پـوهېږي چې دا ناڅاپي یا د تمې خلاف پېښه نده بلکې پدې ښار د حملې او قبضې لپاره طالبانو له څه موده راهیسې ځانونه تیارول چې د پلان سره سم پرې د ځـایې خلکو په وینا د ۴ نه تر ۵ سوو پورې په وروا ولویو وسلو سمبال و طالبانو له ۴ لوریو حمله وکړه ؛ د کابل اداري امنیتي ټول ځواکونه یې له مقابلې عاجز شول او په لږ وخت کې مجاهدین د ټول ښار په نیولو بریالي شول .

قندوس د سمت شمال نورو ولایتونو ته د دروازې حیثیت لري ؛ د افغانستان سره د اوږدې پولې لرونکي د منځنۍ آسیا د یو مهم هېواد تاجکستان سره دا ولایت لږېدلی دی او د شېرخان بندر یې افغانستان د تاجکستان سره دوچې له لارې نخلوي

د غربي اشغالګرو او د هغوئ د لاسپوڅو په مقابل کې په روان ۱۴ کلن مقدس جهادي بهیر کې د قندوس ښار د کوم ولایت رومبنی مرکز دی چې طالبان یې په بشپړه توګه فتح کـوي ؛ دا هماغه قندوس دی چې پـه سمت شمال کې تر ټولو وروسته د طالبانو له لاسه ووت او دا هماغـه قندوس دی چې د سمت شمال د رومبي سقوط پر مهال د ټول سمت شمال نه د راټولو شویو ټولو طالبانو لپاره پناه ځای و ؛ د مرکزي افغانستان سره د قندوس ټولې ځمکنۍ لارې پرې وې ؛ دا ښار په تمامه معنی د محاصرې په حالت کې و او چارچاپېره ټولې سیمې د شمالي ټلوالی په لاس کې وې ؛ دا خوراسخته او اوږده محاصره وه ؛ دښمن به په پرلپسې ډول له هر لوري په قندوس درندې حملې کـولې خـو طالبـانو تـاریخي استقامت ښکاره کـړ ؛ د طالبـانو مخالفینو څو ځلې اتحاد جوړ او د قندوس د نیولو لپاره یې سترې حملې وکړې خو طالبانو په ډېرې مېړانۍ په شا وتمبولې .

د مسلسلې کابو ۳ کلنې دفاع او د لته د ځان منظم کولو او مضبوطولو نه پس چې طالبانو د همدې قندوس نه د دښمن پر ضد په اقدام لاس پورې کړ نو له ځینو ورو سیمو پرته ورته الله تعالی د ټول سمت شمال فتح ورپه برخه کړه ؛ د دښمن کشران یې په پنجشیر ورننویستل او ډېر مشران یې ترکولاب ،استامبول او تهران ورزغلول .

خو اوس چې حالات تر هغې ډېر بدل دي ماته دا سې نه ښکاري چې اسلامي امارت به بیا هم همداسې پلان لري چې په قندوس کې ځانونه ټینګ او بیا د ټول سمت شمال د نیولو لپاره اقدامات پیل کړي؛ او دا ځکه چې د اسلامي امارت لپاره د خپل ولس او مجاهدینو ژوند ډېر مهم دی ؛ د دښمن په مقابل کې فتح غوارې خو پدې شرط چې ولس او مجاهدینو ته پکې ځاني تلفات ونه رسېږي یا بیخي کم وي؛ د قندوس نه د ټول سمت شمال د نیولو په اقدام کې چې ډېرو مجاهدینو او ولسي وګړو د تلف کېدلو

قوي امکان دی نو دا به شاید سمدستي د اسلامي امارت په پلان کې نه وي.

زما په اند خو به شاید د اوږدې مودې لپاره د قندوس ښار کې د مجاهدینو پاتې کول هم د اسلامي امارت هدف نه وي ځکه چې تر څو د دښمن د هوايي ځواک مؤثر جواب نه وي پیدا شوی نو د ښارونو په ښکاره برخو کې د مجاهدینو مېشت کول او یا د دښمن په مقابل کې په مېداني سیمو کې خطونه جوړول کامیابه ستراتېژي نده.

نو د دې خبرې قوي احتمال شته چې شاید څو ورځې پس طالبان د قندوس ښار پرېږدي؛ ځکه چې د قندوس د نیولو ؛ د څو اوونیو لپاره یې د خپلې ولکې لاندې ساتلو او د دښمن هره حمله په شاتمبولو او ورته د ستروماليي او ځاني تلفاتو رسولو له لارې اسلامي امارت کابو هغه ټول اهداف ترلاسه کړل کوم یې چې ترلاسه کول غوښتل.

د عالیقدر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی د وفات د اعلان نه پس به چې دښمن د خپلو غلامو نړیوالو رسنیو له لارې دا خبره زیاته کوله چې اوس به د بهرنو ځواکونو او کابل اداري پرضد ورو ورو جنګ کمزوری شي او ډېر طالبان به د جنګ نه لاس په سرشي ؛ خو اوس چې د افغانستان په زیاترو سیمو او خصوصاً سمت شمال کې د نویو فتوحاتو لړۍ پیل او خبره د قندوس تر فتحې را ورسېده نو د دښمن ټول امېدونه د خاورو سره خاورې شول ؛ ټول اټکلونه یې غلط شول او ټولې نړۍ ته ثابته شوه چې د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د وفات پراعلان په افغانستان کې دیر غلګرو او ګوډاګی اداري پرضد په روان مقاومت کې نه یوازې دا چې کمزوري نده راغلې بلکې لا زیات قوت یې موندلی دی ؛ د نوي امیر ملا اختر محمد منصور حفظه الله په قیادت کې طالبان په نویو جذبو ، نویو ولولو ، نوي احساس او خورا عالي مورال د جنګ ډګر ته راوتي دي نو ځکه یې هغه سیمې هم فتحه کړې چې له دې وړاندې هلته چا د طالب نوم هم نه شو اخستای.

طالبانو د قندوس د فتحې او تردې وخت پورې یې له ځان سره د ساتلو له لارې خپل عسکري طاقت او د بهرنو اشغالګرو ضعف د لمر په څېر ټول عالم ته روښانه کړ، اسلامي امارت ټولې نړۍ ته وښودله چې که څه هم ټوله غربي نړۍ یې پرضد متحده شویده او د انساني تاریخ دې ستر اتحاد د دوئ پرضد په تېرو ۱۴ کلونو کې خپل ټول فوځي طاقت وکارولو چې له امله یې زیات ځاني تلفات هم رامنځته شول خو دې د طالبانو ارادې متزلزلې نکړې؛ د دښمن غوښتنو او زور ته یې سرونه ټیټ نکړل، د اشغالګرو اشغال یې ونه مانه؛ له مادي زور نه یې مرعوب نه شول په ۱۴ کلن اوږد جنګ کې د بزدل دښمن په څېر نه ستړي شول، نه د افرادو قلت سره مخامخ شول او نه یې هم مورال بایلود بلکې لا هم ښه په مینې، لوی جرأت او خورا عالي مورال د دښمن په مقابل کې جنګېږي نو ځکه یې خارجي او داخلي دښمن نور د مقابلې نه عاجز دی او د قندوس په څېر لوی او خورا مهم ښار چې تر ې نیسي نو دفاع ترې نه شي کولای.

په زړه پورې داده چې د قندوس فتحه په داسې وخت کې رامنځته شوه چې په نیویارک کې د ملګرو ملتونو په جنرال اسامبلۍ کې د نړۍ د مېوادونو د مشرانو په سطحه کلنۍ غونډه روانه وه او د خبرو محور او اصل موضوع د دوئ په وینا ((په نړۍ کې د اسلامي بنسټپالنې او تروریزم اغېزې)) وه.

که اسلامي امارت د ځانګړي پلان او پروګرام له مخې پدې خاص وخت کې دا حمله کړې وي نو یقیناً چې دا د اسلامي امارت ډېر لوی بریالیتوب دی ځکه چې په ډېره اسانۍ یې پدې مهم وخت کې د هماغه جهاد طاقت نړۍ ته ښکاره کړ د کوم پرضد چې د نړۍ د امشرا ن را ټول شوي وو ؛ د اسلامي امارت مجاهدینو ټولې نړۍ ته دا پیغام ورکړ چې نه نور غاصب قوتونه او نه هم د دوئ په لاس

جوړه شوی لاسپوڅې اداره د مجاهدینو مقابله روانه سا تلای شي او نه نور د جهاد زور ته د ټینګې دي.

او که په نیویارک کې د یادې غونډې سره د قندوس فتحه د پلان له مخې نه وي بلکې یوازې یو تصادف وي نو د ابیا ډېر په زړه پورې تصادف دی ځکه چې له ځانه سره یې هماغه پیغام ولرلو د کوم نه موچې یادونه وکړه ځکه خو د امریکا په شمول هیچا هم د طالبانو د دې سترې فتحې نه د انکار جرأت و نه شو کړای؛ امریکا پدې اعتراف کولو مجبوره شوه چې په قندوس د طالبانو قبضه د افغان دولت لپاره لوی ګوزار دی؛ د طالبانو د پرمختګ په اړه اشرف غني څو کرته رسنیو ته دروغ وویل خو هغه هم د حقایقو په پټولو ونه توانېد؛ اشرف غني ویلي وو چې موږ به بېرته ډېر ژر قندوس ونیسو خو په جواب کې یې د اسلامي امارت ویاند ویلي چې قندوس خو د کابل ادارې له لاسه وتلی د نور افغانستان نه به یې هم ژر تېر ور تېر ول کړو.

او هغه رسنۍ چې شپه او ورځ د اشغالګرو او کابل ادارې لپاره تبلیغات کوي هغه هم دې اعتراف کولو ته اړ شوې چې وو ایې: د قندوس نیول د ۲۰۰۱م کال نه پس د طالبانو تر ټولو ستره کامیابي ده.

نو ځکه او س هر څوک وایې: پدې کې هیڅ شک نشته چې ۱۴ کاله پس پر قندوس د طالبانو قبضه د کابل ادارې او اشغالګرو ځواکونو لپاره ستر ملا ماتونکی ګوزار دی.

حقیقت دا دی چې د قندوس فتحې امریکا او اتحادیان یې سخت ناهیلي کړل نو ځکه په نیویارک کې د امریکا ولسمشر پدې تریخ حقیقت اعتراف کولو ته اړ شو چې پر نړۍ د زور او پیسو له لارې د قبضې امریکایي ستراتیژي نوره ناکامه ده او د کوم هېواد د ولس له خوښې پرته دا وږدې مودې لپاره د قبضې دوام ناشونی کار دی.

که د اوباما وینا ته په غور وکتل شي نو هغه پدې حقیقت اعتراف کړی دی چې د طالبانو په شمول د اشغال پرضد د نړۍ هر حرکت د اشغالګرو پرضد د مبارزې حق لري نو باید اشغالګر فکر وکړي او د کمزورو هېوادونو اشغال ته د پای ټکی کېږدي.

نو نړۍ باید نور د افغانستان په اړه په بې ګټې خبرو وختونه ضایع نکړي او نه نور د اشغالګرو د اشغال د دوام او یا د لاسپوڅې ادارې د بقا فکر وکړي بلکې د افغانانو د اراد و احترام دې وکړي د افغانستان نه دې بهرني فوځونه راوباسي او افغانان دې پرېږدي چې یوه داسې اداره جوړه کړي چې پکې د ټول ملت خیر نغښتی وي او ټول ملت ته د منلو وړ وي.

د کابل د ادارې او د امریکا په مشرۍ کې د ټولو غربي اشغالګرو د اضعف چې طالبانو نړۍ ته ښکاره کړای شو دا د طالبانو ډېره لویه کامیابي ده نو که له دې نه پس ترې تاکتیکي شاتګ کوي او یا یې له مصلحت له مخې پرېږدي دا به د طالبانو کمزوري نه ګڼل کېږي او نه به یې اعتبار ته څه تاوان ورسېږي بلکې په خپلې ارادې او د خپل پلان سره سم دیو لوي ښار نیول او بیا یې د خپل پلان له مخې پرېښودل او ترې خوندي وتل به اصل بریالیتوب او د دې خبرې روښانه دلیل وي چې د جنګ ابتکار د طالبانو په لاس کې دی او دا چې اوس طالبان د هېواد په زیاترو برخو کې اقدامات کوي او د کابل لاسپوڅې اداره او ټول غربي اتحاد کمزوري دفاعي حالت ته راغلي دي.

د د قندوس د بېرته نیولو لپاره د ناټو ځواکونو هم د لاسپوڅې اردو مرستې ته راودانګل خو هیڅ پرمختګ یې و نه شو کړای او هر ځل یې چې پر طالبانو ګډه حمله کړې ده نو د ماتې سره مخامخ شوي دي چې شکست خوړلي او بزدلو اشغالګرو د دې مسلسلو ماتو نه پس د مسلمانو او مجاهدو قندوسیانو نه د انتقام اخستلو په موخه بمبارونه پیل کړي دي چې پدې لړکې د اکتوبر په ۳ یمې نېټې امریکایي ځواکونو د بې پولې ډاکترانو په نوم د نړیوالې ادارې روغتون هم په نښه کړ چې پکې د ډاکترنو په شمول د روغتون ۱۲ کارکونکي او ۱۰ مریضان مړه او ۳۷ ټپیان شول؛ په وژل شویو کې

۳ کوچنيـان هـم شـامل دي ؛ دبمبارپرمهـال پـه روغتـون کـې ۱۰۵مريضـان ، ددوئ ګـڼ پيـوازان او د۸۰ نـه زيـات دروغتـون کارکونکي موجودوو ؛ دروغتون ډاکترانو ويلي دي چې مسلسل ۱۰۰دقيقې امريکايې طيارو پردې روغتون بمبارو کړې چې له امله يې روغتون وران او يـاده مرګ ژوبله رامنځته شوه ؛ دوئ دا هم ويلي دي چې ټولې نښې نښانې داسې دي چې پـه روغتـون شـوي بمبارکې امريکايانو کيمياوي مواد کارولي دي ؛ دحميد الله په نوم يوډاکتر وايي چې دادفوځي مشرانو او دچارو دماهرينو کار دی چې پـدې اړه پلټنـه وکـړي او دحقايقونـه خلـک خبرکـړي خـودا چې دمړو غوښې شړېدلې ؛شکلونه يې له پېژندګلوۍ وتې دي او ترلړې ساحو خلک په تنفس کولو کې دتکليف سره مخامخ شويدي نو دا ددې خبرې قـوي دليـل دی چې کيميـاوي مواد کـارول شـويدي؛ ډاکترانو او دروغتـون مسـئولينو دا هم ويلـي دي چې موږ دبمبارپـه جريـان کې دافغـان دولت او امريکايانو سره رابطه ټينګه کړه او لـه دې مو خبرکړل چې زموږ په روغتـون بمبار روان دی نو بايد ژرترژره بنـد شـي خو هغـوئ زموږ پـه خبره هيڅ غوږونـه ګرولـو او تـر ۱۰۰ دقيقو يې بمبارجاري وساتلو .

دملګرو ملتونـــو اداری دبشـــر دحقوقو دکمېټې مشـــرزيد رعدالحسن دامريکا داعمل په سختو ټکو غندلی دی او ويلي يې دي چې دا داسې ناقابل معـافي عمل دی چې دجنګي جرمونـو لاندې راتلای شي .

پرروغتون له حملې وروسته درې ځلې امريکا خپل بيان بدل کـړ؛ پـه سرکې يې ويلي وو اشتباه شويده بيـايې خبره بدلـه کړه او ويې ويـل لـه دې روغتـون نـه پـردوئ ډزې شـوې وې نوځکـه يې بمبـارېږي وکـړ او س دناټو او امريکـايي ځواکونو لـوی قومانـدان جنرال کمبيل په واشنګټن کې يوې خبري غونډې ته ويلي دي چې دکندوز پـر روغتـون يې هوايي بريد دافغان ځواکونو په غوښتنه وروسته ترهغې ترسره کړچې وسلوالو لـه روغتـون څخه پرافغـان ځواکونو ډزې کولې .

امريکايانو هرځـل دروغ ويلـي و نوځکـه يـې خبـره بـدلېږي رابدلېږي ؛حقيقت دادی چې نه دې روغتون ته کوم مجاهد ورغلی دی ؛ نـه لـه روغتونـه پربهرنو يـا داخلي ځواکونو ډزې شويدي او نـه دې روغتون دډزو په ځای کې قراردرلود ؛که دلته مجاهدينو شتون درلود اي نوپکارده چې په مړو يا ټپيانو کې هم مجاهدين واي حال داچې دلته په وژل شويو او ټپيانو کې يو مجاهد هم نشته چې ددې حقيقت اظهارپخپله ددې اداري مشرپارټ جانسينس هم کړيدی ؛ هغـه ښـه پـه روښـانو ټکو ويلـي دي چې مـوږ دې حملوډېر دردولي يوځکه چې پکې يـو اځې زموږډاکترانو او مريضـانو ته مرګ ژوبله اوښتې ده

امريکايـانو اوس پـدې اړه خپلـه خطـا منلی ده ؛ببښـنه يـې هم غوښتی ده او وژل شـويو تنانو ته يـې دځـه پيسـو ورکولوژمنـه هم کړيده خو پوښتنه داده چې آيا يو اځې په ببښنې غوښتلو او دبې ګناه هـروژل شـوي تـن پـه سـرددوه درې زروډالروپـه ورکولـو دادومره سترجنايت ښنل کېدای شي ؟

آيادبې ګناه افغانانووينه دومره سپکه ده چې داسې په اسانه دې هدرولاړه شي؟

آيـا امريکـا اونورلويـديځ خپلو اتباعوتـه هـم پـه همداسـې نظرګوري لکه موږته چې په کوم نظرګوري؟

کـه دکوم اسلامي هېواد مسلمان فـوځ دامريکا يابل کوم غربي هېوادبې ګناه وګړي په داسې بې رحمۍ ووژني نويو اځې دبښنې په غوښتلوبه دوئ مسلمان فوځ وبښي؟

که غربي ولسونه رښتيا هم بشرپالي وي او په رښتيا هم ټول بشرته په يونظرګوري نوپکارده چې اوس خو راپورته شي او دخپلو لويو لويو دعوو يو څوفيصده رښتينوالی خونړۍ ته ښکاره کړي.

اوس ددې وخـت دی چې غربـي ولسـونه خپـل هغـه دولتـي واکمنـان دمحـاکمې مېـز تـه راکـاږي چې پرافغانستان دحملـې پرېکړې يـې کـړې وې او يـا يـې پـه پټو سترګو پرافغانستان ديرغل

لپاره جوړ شوي اتحاد کې خپل هېوادونه راښکېل کړل؛ لویدیځوال ولسونه باید د دې حاکمانو نه وپوښتي چې ولې مو د افغانانو تاریخ هېر کړی و؛ دلته مو د سترې برتانې او لوی شوروي اتحاد تاریخي شکستونه ولې له پامه غورځولي و؟ د صلیبي جنګونو د اعلان سره سم مو چې پر افغانستان حمله وکړه؛ دا هېواد مو لوټې لوټې او دلته مو په لسګونو زره فوځیان او په ملیاردونو ډالر ضایع کړل نو تاسو څه ترلاسه کړل؟

آیا اسلام مو له منځه یوړلو؟ آیا د جهاد روحیه مو ضعیفه کړه؟ آیا له مجاهدینو مو افغانستان خالي کړ؟ لاسپوڅې اداري او اردو باندې چې بې حده زیات مصارف وشول آیا د خپل ځان نه د دفاع او په افغانستان کې د بقا اهلیت یې پیدا کړ او د غرب ممثله اداره جوړه شوه؟ او آیا د امریکا او نور لویدیځ شوم اهداف دلته ترسره شول؟

چې دا هیڅ هم ندي ترسره شوي نو لږ تر لږه خو دې دا ولسونه د خپلو دولتونو نه دا غوښتنه وکړي چې نور دې بې ګټې جنګ کې خپل فوځیان او په ملیاردونو ډالر نه ضایع کوي خپل فوځونه دې له افغانستان نه راوباسي او افغانان دې پرېږدي چې په خپل هېواد دغه نظام پخپله نافذ کړي د کوم لپاره چې په سونو زرو افغانانو د سرونو قرباني ورکړیده.

د کابل اداره چې د تېر و ۱۴ کلونو راهیسې د مجاهدینو د هر بریالیتوب پر مهال خپله پړه پر نورو وراچوي داخل یې هم همداسې وکړل؛ پرځای د دې چې د مجاهدینو په جرأت، قوت، ښه پلان، نظم او غښتلتیا او د خپلو امنیتي ځواکونو او اربکیانو په کمزورۍ، بزدلۍ او بې کفایتۍ یې اعتراف کړی وای او تر څنګ یې د املی وای چې ملت یې نور نه غواړي د ځني ګاوند یو هېوادونو په هکله یې داسې څرګندونې وکړې لکه د قندوس فاتحین چې افغانان نه بلکې نور څوک وي چې دا د افغان ملت او د دوی د تاریخ سره ډېره ستره جفا ده.

اسلامي امارت د امنې چې د ټولې نړۍ د مسلمانانو د زړه مینه، همدرد دي او دعاګانې ور سره دي او له دې هم انکار نه کوي چې د ستر کفري قابض اتحاد په مقابل کې د روان جهاد په مقدسو صفوفو کې ور سره د نړۍ د ځني برخو نه راغلي ځوانان شریک شوي دي چې د دوی هرې قربانۍ ته د ډېر قدر په نظر ګوري او په دې هکله د چا د دښمنۍ او ملامتیا هیڅ پروا نه ساتي خو تر کومه چې د دولتونو خبره ده نو اسلامي امارت د نړۍ په کوم دولت کې نه د اجرأت ویني او نه د نړۍ د کوم دولت په ربښتینې خواخوږۍ، وفا او اخلاص عقیده لري او نه دا د ځان لپاره ګټوره خبره بولي.

اسلامي امارت یوازې په اسلامي اخوت عقیده لري او د صالحو، زیرکو او مخلصو مشرانو تر قیادت لاندې را جمع شوي ملسمان ځوانان اسلامي نړۍ ته د ورپېښو ټولو ستونزو حل او اصل طاقت ګڼي نو ځکه سمتي، ژبني، قومي او نور هر ډول تعصبات ردوي خود خپل ولس مزاج ته پاملرنه هم مهمه ګڼي؛ د سیمې او خصوصاً ګاونډیو هېوادونو حساسیتونه هم له پامه نه غورځوي؛ د نړۍ سیاسي اوضاع څاري او د نړۍ او سیمې د سیاست په لوړوا و جورو پوهېږي نو ځکه د ټولو داسې حرکتونو او اقداماتونه ځان ژغوري چې د ولس د حساسیتونو د راپارېدلو او د نورو هېوادونو سره د دښمنۍ او روابطو خرابېدلو سبب ګرځي.

اسلامي امارت د ټولې نړۍ سره د ښمني او د روابطو خرابول نه غواړي او نه د نورو په داخلي چارو کې د لاسوهنې پالیسي لري نو ځکه نورو ته هم په خپلو چارو کې د مداخلې اجازه نه ورکوي؛ اسلامي امارت خپلواک دی؛ اراده یې خپله ده؛ واک یې خپل دی؛ د خپلو موخو لپاره جنګېږي او د خپل پلان او پروګرام له مخې به مخ په وړاندې ځي. انشاءالله تعالی.

داسلامی نړۍ ستر عالم شیخ ابو قتاده حفظه الله

# په جهاد کې

## دمطبوعاتي فعالیت ارزښت

الحمد لله والصلاة والسلام علی رسول الله ومن واله.

علامه شیخ ابو قتاده صیب! الله جل جلاله دې ستاسې حفاظت او ساتنه وکړي او الله جل جلاله دې تاسې په حق باندې ثابت قدم لري.

شیخ صیب! دشام په جهادي ساحه کې ځینې ملگري په مطبوعاتي برخه کې کار کوي دا ځینې پوښتنې یې تاسې ته رالیږلي او ځواب ته مو منتظر دي الله جل جلاله دې تا ته ښه جزاء درکړي.

پوښتنې: زموږ فاضل شیخه! الله جل جلاله دې ستا حفاظت او ساتنه وکړي السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته:

(۱) کوم مجاهد چې په جهادي مرکزونو کې مطبوعاتي فعالیت لکه (جهادي فلمونه ایډیټ کول یا انځورونه ډیزاین کول او داسې نور) کوي آیا هغه ته دمرابط في سبیل الله اجر ورکول کیږي، زموږ مقصد هغه احادیث دي چې درباط في سبیل الله دفضیلت په اړه راغلي، لکه دا چې (دالله جل جلاله په لاره کې یوه ورځ رباط دحجر اسود په څنگ کې دلیلة القدر دشپې له سبا کولو څخه زیات فضیلت لري؟

او آیا که چیرته کوم مجاهد په دغه حال کې ووژل شي ددې عمل اجر دقیامت ترورځې پورې ورکول کیږي؟

(۲) کوم ملگری چې په مطبوعاتي برخه کې په روزنه کې تقصیر کوي او ددې تقصیر له امله دجهاد دمخالفانو رسنیز فعالیت یا دغلاتو رسنیز فعالیت یا دنورو فعالیت غالب شو او په نتیجه کې یې گڼ شمیر ځوانان دغلاتو لیکو ته جذب شي، آیا ددې له امله تقصیر کوونکی ملگری گناهگاریږي؟

ځکه ډیر ملگري په جهادي فعالیتونو کې په رسنیز ډگر کې کار کول نه خوښوي بلکه جگړه ایز یا دتصنیع او نورو برخو کې په شوق کار کوي.

نو شیخ صیب موږ غواړو چې په دې اړه یو ځانگړې توصیه وکړې ترڅو دا برخه همداسې خواره پاتې نشي.

شیخ ابو قتاده حفظه الله په ځواب کې ورته ولیکل:

وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته.

زما مسلمانه وروره! پدې ښه ځان پوه کړه، چې داسلام په تاریخ بلکه دملتونو په تاریخ کې دجهاد او قتال له سترو کارونو څخه رسنیز فعالیت او مطبوعاتي کار دی،

د ځان دوجود ثابتولو او دغلبې نیمایې همدا رسنیز فعالیت دی، دا وگورئ زموږ رسول صلی الله علیه وسلم حسان رضی الله عنه هڅوي ترڅو دمشرکانو هجوه وکړي، او هغه ته وایې چې ستا کلام په هغوی دغشو له گذارونو څخه هم بد لگیږي.

مسلم په خپل صحیح کې له حضرت عائشه رضی الله عنها څخه روایت کړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دقریشو هجوه کوئ دا په هغوی باندې دغشو له فایرونو څخه هم بد تمامیږي، لومړی ابن رواحه ته یوڅوک ورولیږه چې دکفارو هجوه وکړې، هغه یې هجوه وکړه،

رسول الله پرې اکتفاء ونه کړه، بيا يې کعب ابن مالک رضی الله عنه ته ورولیږه چې دمشرکانو هجوه وکړي، بيا يې حسان ابن ثابت رضی الله عنه ته ورولیږه، چې کله حسان رضی الله عنه ته ورننه ووت حسان وویل: تاسې ته نږدې ده چې دغه لکۍ وهونکي زمري ته يې راولیږئ (ځان يې له زمري او خپله ژبه يې دزمري له لکۍ سره تشبيه کړه زمری چې کله په قهر شي خپله لکۍ یوه بلې خوا ته وهي) بيا يې ژبه راوویستله یو او بل لوري ته يې وښوروله او ويې ویل: قسم په هغه ذات چې ته يې په حقه راليږلی يې زه به يې په خپله ژبه داسې تار تار کړم لکه څنګه چې پوستکی شکول کيږي، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمایل: عجله مه کوه ځکه ابو بکر رضی الله عنه ته دقريشو نسبونه ښه ورمعلوم دي، زه هم په قريشو کې نسب لرم ترڅو زما نسب په لنډه توګه درته وښايې (داسې نه چې زما دنسب هجوه وکړې) حسان ورغی بيا راستون شو او ويې يارسول الله! ماته يې ستا نسب په لنډه توګه راوښود، قسم په هغه ذات چې ته يې په حقه راليږلی يې، زه به ستا نسب له هجوې داسې روغ رمټ باسم لکه له اوړو چې ويښته باسل کيږي، عائشه رضی الله عنها فرمايي: چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم واوريدل چې حسان رضی الله عنه ته يې ويل: روح القدس جبرائيل به تل ستا تائيد او ملاتړ کوي ترڅو چې ته له الله جل جلاله او دهغه له رسول څخه دفاع کوې.

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي: چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم دا هم واوريدل چې ويل يې: حسان يې هجوه وکړه دمسلمانانو زړونه يې هم يخ کړل او خپل زړه يې هم يخ کړ.

همدغه راز رسول الله صلی الله عليه وسلم عمر فاروق رضی الله عنه ته امر کوي چې ابو سفيان ته داحد له غزا وروسته ځواب ورکړي او ځواب هم رسول الله صلی الله عليه وسلم ورښيي:

امام بخاري رحمه الله په خپل صحيح کې له براء ابن عازب رضی الله عنه څخه روايت کړی چې موږ داحد دغزا په ورځ له مشرکانو سره مخامخ شوو، رسول الله صلی الله عليه وسلم دغشو ويشتونکو یوه ډله په غونډۍ کښینوله او عبد الله رضی الله عنه يې ورباندې امير وټاکه، (په دې اوږد حديث کې وروسته راځي) چې ابو سفيان سر پورته کړ او ويې ويل: آيا په تاسې کې محمد شته؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ځواب مه ورکوئ، هغه وويل: آيا په تاسې کې ابن ابي قحافه (ابو بکر رضی الله عنه (شته؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمایل: ځواب مه ورکوئ، هغه وويل: آيا په تاسې کې دخطاب زوی (عمر رضی الله عنه) شته؟ بيا يې وويل: دا ټول وژل شوي ځکه که ژوندي وای نو ځواب به يې راکړی وو، عمر رضی الله عنه په خپل ځان توان له لاسه ورکړ او ويې ويل: دروغ دې وويل: ای دالله دښمنه! الله جل جلاله هغه خلک لا ژوندي پرې ايښي چې تا به پرې رسوا کړي، ابو سفيان وويل :هبل (دبوت نوم) لوړ شه، نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ځواب ورکړئ، اصحابو وفرمایل: څه ورته ووايو؟ ويې ويل: ورته ووايئ: الله جل جلاله لوړ او لوی دی، ابو سفيان وويل: موږ عزی (دبت نوم) لرو او تاسې عزی نه لرئ. نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمایل: ځواب ورکړئ، اصحابو وفرمايل: څه ورته ووايو؟ ويې ويل: ورته ووايئ: الله جل جلاله زموږ مولی دی او تاسې مولی نلرئ.

همدغه راز رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل شاعر ته خپل منبر سموي ترڅو دهغه صلی الله عليه وسلم او اسلام په اړه حق کلام ووايي، نو هغه خلک کومه خوا روان دي چې دا ستر او عظيم کارونه پريږدي او التفات نه ورته کوي؟؟

په امير باندې لازم او واجب دي چې یوه ډله خلک دې ته فارغ کړي چې په خبرو دحق مرسته وکړي لکه څنګه چې يو مجاهد دټوپک په شپيلۍ دحق لپاره مبارزه کوي، که په خپله نه تياريدل په زور دې يې دې کار ته آماده کړي، که جهاد له دغه ستر کار څخه خالي پاتې شو نو نه موږ خپل ځان چاته ورپيژندلی شو او نه په خپلو دښمنانو رد کولای شو او نه ځوانان او سړي راجلبولی شو چې دسنګرونو او جبهاتو خلاوې ورباندې ډکې کړو.

دغه کار فرض کفایي ده که ټولو مجاهدینو پریښود بلا استثناء به ټول ګناهګار وي، دا کار له جهاد او قتال سره برابر ده، بلکه په خپله جهاد دی، عربو به دسفر لپاره ټپه ویونکی کرایه کاوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دا کار کړی، نو چې کله یو انسان یا حیوان په خپل سفر کې داسې ټپو او اشعارو ته اړتیا لري ترڅو په سفر باندې توان پیدا کړي، نو آیا مجاهدین هغه چا ته حاجت نلري چې دهغوی خبرونه او انځورونه او پیغامونه نقل کړي ترڅو یې زړونه تقویه او نفسونه یې ثبات پیدا کړي؟

له هغه چا به څوک زیات اجر ولري چې تحریض علی القتال کوي، له مجاهدینو دفاع کوي، دهغوی خبرونه نشر- کوي، او پدې توګه دډیر مسلمانانو زړونه خوشالوي.؟

ډیر هغه حق چې مجاهد پکې عملا او علما حقا او صدقا واقع ده کچیرته ترشا داسې څوک ونلري چې ویې لیکي او ثبت یې کړي، نو فوت کیږي او اثر یې له منځه ځي.

او قسم په الله که زه داسې ووایم چې رسنیز فعالیت کوونکي مجاهدین له ډیرو هغو مجاهدینو څخه ستر اجر لري چې مخامخ په جګړه کې برخه اخلي نو نه به ګناهګار شم او نه دا لیرې خبره ده.

زموږ ډیرې هڅې له همدې امله ضائع کیږي او اغیار یې غلا کړي، که چیرته رسنیز کنډکونه ونلرو چې په غاړه یې واخلي ثبت یې کړي او په رښتوني بڼه یې نشر ته وسپاري.

ډیر هغه درواغ چې موږ پرې تورن یو دبیان په زور او دخلکو له خبرولو پرته یې بله ددفاع لاره نشته.

ډیر مسلمانان ځوانان دګمراه، مبتدع او کافر دښمن مطبوعاتي ځواک په سبب له موږ څخه غلا کیږي.

ډیر کرته موږ د صادقانو له دعاء څخه ځکه محرومیږو چې هغوی زموږ له خبرونو څخه ناخبره وي.

ډیر نفسونه هغه وخت ترقي کوي او خوشالیږي چې کله هغوی دا درک کړي چې مسلمانان زموږ په فتوحاتو او خبرونو خوشالیږي نو دهغوی نفسونه لازیاتې قربانی، ورکړې او ځان فدا کولو ته تیاریږي، ځکه کله چې هغوی ګوري چې زموږ قرباني بې ځایه نه ځي، بلکه پدې سره دمجاهدینو ملاتړ نور هم زیاتیږي، نو په ډیر ښه زړه پرمختګ ځان فدا کولو ته چمتو کیږي.

په رسنیزه جګړه کې هره نوعه تقصیر په نظامي جګړه کې له تقصیر څخه زیات زیان لري، او په مطبوعاتي برخه کې دتیروتنې تاوان هم د جګړې په میدان کې له تیروتنې زیات تاوان لري.

او قسم په الله! کوم مجاهدین چې پدې میدان کې کار کوي او شپه شوګیر کوي دهغوی شوګیر د هغه پیره دار له شوګیر سره په اجر کې برابر ده چې په جبهو او سنګرونو کې پیره کوي، هغه ته خپل اجر هم ورکول کیږي او دهغه په څیر دنورو هم، او هغه ته دهغه عالم اجر هم ورکول کیږي چې دشریعت دیوې مسئلې دتحقیق او څیړنې لپاره شپه روڼوي، او که پدې حال کې مرګ ورته راغی چې په اخلاص او دثواب په نیت خپل دې کار ته دوام ورکوي دی به له خپلو هغو ملګرو سره یوځای راپورته کیږي چې دبمباری لاندې یا په مرمۍ وژل شوی وي.

او دغه سترګه چې په مطبوعاتي فعالیت کې ویښه پاتې کیږي دا دهغې سترګې په څیر دی چې دالله جل جلاله په لاره کې پیره کوي.

زه دنصیحت په توګه دمجاهدینو مشرانو ته وایم چې که چیرته کوم داسې ملګری پیدا شو چې دمطبوعاتي فعالیت وړتیا لري او په سمه توګه دا کار کولی شي خو بیا هم ددې کار له کولو ډډه کوي نو له جهاد او قتال څخه منعه کړئ، ترڅو دخپل نفس له خوشالولو څخه محروم شي، ځکه هغه کار پریښودل چې دجهاد له مصالحو څخه وي او په ځای یې داسې کار کول چې ده خوند ورکوي دا یو نوعه دنفس خوشالول دي، دشرعي جهاد مقصد ندی.

الله جل جلاله دې ټولو ته دهغو اعمالو دکولو توفیق ورکړي چې دهغه خوښ او هغه پرې راضي کیږي.

او ټولې ستاینې الله رب العالمین لره دي.



# طالبانو په یوه مارش د یرغلگرو

## څوارلس کلنه خواري په اوبو لاهو کړه

**سید شریف**

دطالبانو په لاس د کندوز سقوط دیرغلگرو ځواکونو هغه ویناوې هسې غولونکي پړپړې ثابتې کړې چې ویل به یې افغان پوځ کولای شي هغه سیمې چې ددوی په ملاتړ یې نیولې او ساتلې،ددوی تر مستقیمې مداخلې وروسته هم ساتلی شي یرغلگرو په گڼونړیوالو کنفرانسونواوسیمنارونو کې د داخلي عسکرو تر حد زیاته ستاینه کړې ،خو دادی نن یې نړیوال دسر په سترگو ویني چې هماغه پوځ چې دوی روزلی او پاللی ؤ د لیرې سیمو، ولسوالیو څه چې د ولایتونو مرکزونه هم نه شي ساتلی.

نړیوالو او کورنیو رسنیو د طالبانو پر ضد زیات منفي تبلیغات کړي وو،دوی دخپل معمول له مخې د طالبانو ډیره وړه اشتباه ډیره لویه تبلیغ کړې او دحکومت او یرغلگرو ځواکونو پر نه بخښونکو جنایتونو یې په وار وار خروار خروار خاورې انبار کړې دي .

د کندوز د سقوط څخه وروسته یو ځل بیا روښانه شوه چې ولس ددغه ډول رسنیو په پروپاگند باور نه کوي، ځکه طالبان چې کندوز ته ننوتل ددې پرځای چې خلک یې پرووړاندې ودریږي او یا حد اقل د مخالفت اواز پورته کړي،برعکس خلگو د طالبانو په ورتگ ډیرې خوشحالۍ وکړې او د «موږ درسره یو!» په شعارونه یې بدرگه کړل .

د طالبانو مشر ملا اختر محمد منصور صاحب طالب جنگیالیو ته ویلي چې د خلگو امنیت وساتي، کوم کسانو چې په حکومتي ادارو کې کار کړی او اوس په خپلو کورنو کې اوسي هغوی ته زیان ونه رسوي، د خلگو د شتمنیو، ملکیتونو ساتنې ته پوره توجه وکړي، دعام المنفعه تاسیساتو دورانې او چور چپاول مخه ونیسي- او په توله کې د خلگو سوکاله ژوند او هوساینې ته لا ډیره زمینه برابره کړي .

په تیر کې د کندوز د سقوط غوندې حالاتو کې مغرضو کړیو اولوټمارو افرادو دولتي او ملکي شتمنۍ چور کړې، شخصي او تنظیمي انتقام یې اخیستی ا وخلک یې بې له محاکمې وژلي او ځورلي دي .طالبانو د خپلې روښانه سابقې په څیر په کندوز کې هم د چور چپاول او انتقام جویې مخه نیولې او تراوسه کومه دا ډول ناوړه پیښه نه ده رامنځته شوې چې د طالبانو ښه ماضي داغمنه کړي.

د کندوز سقوط په اثبات ورسوله چې د جگړې ابتکار د طالبانو په لاس کې دی، دوی چې هر ځای او هر وخت وغواړي بریدونه کولای شي، پراخې سیمې اود ولسوالیو مرکزونه نیولی او تر کلونو کلونو ساتلی شي، اوس چې یې په لومړي ځل د کندوز غوندې مهم او لوی ولایت مرکز ونیو، دښمن یې هم باید د یو تریخ حقیقت په توگه دطالبانو پر برلاسۍ اعتراف وکړي او خپل شکست ومني.

مهمه داده طالبان چې دامهال د هیواد په گوټ گوټ کې د یرغلگرو ځواکونو او کورنیو مجهزو عسکروسره په پراخه جگړه بوخت دي، یوازې هغو طالب جنگیالیو چې کندوز کې دي ویې کولای شوای چې په یوه مارش سره د کندوز ولایت ته سقوط ورکړي او دیرغلگروله لورې روزل شوي او په وسلو سمبال شوي پوځیان ، پولیس او اربکیان له پخو مورچلونو څخه وشړي .اما برعکس ولس ولیدل چې د کندوز ښار د لاندې کولو لپاره د کابل ادارې د یرغلگرو ځواکونو څخه د هوایې مرستې غوښتنه وکړه او د نورو ولایتونو او حتی کابل څخه یې کومکي عسکر ور وغوښت

# نوميالي عالمان

مفتي حبيب الله قاسمي

د هلمند د بست سيمې نوميالی عالم
د دريمې پيړۍ نوميالی محدث او نوماند فقيه

# علامه ابن حبان رحمه الله

زوکړه : ۲۷۰هـ مړينه :

**يادښت :** زموږ هېواد په تېر اسلامي تاريخ کې دعلم په هر ډګر کې نوميالي عالمان لرل، ښکلي مفسرين ، نوميالي محدثين اوغښتلي فقهاء يې لرل چې نړۍ وال شهرت يې ګټلی دی، هغوی د تدريس او قلم په ډګر کې اسلام او مسلمانان ته نه هېريدونکي او تل پاته خدمتونه کړي دي.

زموږ نوی نسل له دغو پخوانيو علمي شخصيتونو سره نا اشنااونابلده دی ددې له پاره چې دوی ورسره ا شنا شي زه له تيرې څه پاسه يوې لسيزې راهيسې ددوی دژوند پاڼوپه راټولولو اخته يم ، غواړم ددې لړۍ پيل د هېواد له نوميالي محدث علامه ابن حبان رحمه الله څخه وکړم اودنوموړي په اړه معلومات درسره شريک کړم.

**[۱]ـــ نوم او زوکړه :**

خپل نوم يې ((محمد)) د((حبان)) زوی ، د((احمد)) لمسی او د ((حبان)) کړوسی دی، چې په خټه عدناني عرب و(۱) د افغانستان د اوسني هلمند په ((بست)) کې په دوه سوه اويا (۲۷۰)هجري په شا او خوکې کې زيږلي و. دغه مهال پر هېواد د ((صفاريانو)) او ((ساسانيانو))واکمني وه.

که څه هم يوه مورخ يې د زوکړې معلوم کال نه دی ياد کړی ؛ خو دوفات په اړه ټول مورخين يوه خوله دي چې نوموړی پرکال ۳۵٤ ه کې داتيا کلونو په عمر وفات شوی.(۲)

**[۲]ـ د علامه ابن حبان دزوکړې سيمه ((بست)) پيژندنه:**

زموږ د اوسني هلمند په لښکر ګاه کې دننه يوه سيمه ده ،چې پخوا دپخواني سجستان هېواد يو ولايت ګڼل کيده تردانژدې وخته پورې د ((بست)) دکلاوو نښې پاتې وې ، نوميالی مسلمان جغرافيه پوهه او پياوړی مورخ علامه ياقوت حموي (مړ: ٦٢٦ هـ)په معجم البلدان کې د دغې سيمې پيژندنه داسې کوي: (بُست چې (با) توری يې پېښ لري، د سجستان اوغزني او هرات ترمنځ يولوی ښار دی، چې ګرمه هوا لري اوشا اوخوا سيمو ته يې ((ګرمسير)) وايي،چې معنايې د:((تودې سيمې)) ده، بست ډيرې وپالې او شنې سيمې لري، چې اوس پکې يوڅه ويجاړې هم راغلې ده))(۳).

عرب مورخين زياتوي: ((دبست سيمه دسجستان ختيځ ته پرته ده دهلمند درياب په غاړه پرته ده چې جنوب ته داراغنداب له سيند سره نښلي ، دغه ډير ښکلی سيمه څکه ده

---

۱ ياقوت حموي (مړ : ٦٢٦ هـ )په معجم البلدان کې دنوموړی شجره ترعدنان پورې ټولې ليکلې ده اوغه راز علامه علاء الدين فارسي دخپل کتاب صحيح په ترتيب شوې نسخه صحيح ابن حبان ابن بلبان په سريزه کې شته.

۲ وګورئ دصحيح ابن حبنان له پاره داستاد شيعب ارناووط سريزه : مخ.
۳ معجم البلدان لومړی ټوک ۲۹۵کې مخ.

جې ددوه دریابونوترمنځ پرته اوډیر کرهنیزه سیمه ده ...
بست په درې څلوېښتم هجری کال کې دنامتو صحابي حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه په لاس فتحه شوه)) ٤ دغې سیمې ته ځکه ((بست)) وایي چې: فارسي بست داسې ځای ته وایي چې : ((دمیوو او ګلانو خوږې وږې او بوی ترې ځي)).(٥)

### د((بست)) سیمې ویجاړې:

عرب مورخین لیکي : له بده مرغه دغه سیمه ، ٥٤٥ ه .په شاواوخواکې دعلاء الدین جهان سوز (نړۍ سوځونکی )غوري په زمانه کې ویجاړه شوه ))٦ ځکه یاقوت حموي دغه سیمه کې په اومه هجري پیړۍ کې ویجاړه بولي . کیدای شوای دغه سیمه بېرته ودانه شوې وای ؛خو خو داتمې پیړۍ په پای کې د ((ګوډتیمور)) دجنګونو له امله دغه سیمه یوځل بیا هغه مهال ویجاړه شوه کله چې د(( زرنج)) له لوري پرې چپاو راوړو او یوازې په دغه سیمه کې د ((بست)) تشې کلاوې پاتې شوې . څرنګه چې واکمنو به له دغوو کلاوو به دهغه مهال واکمنو دجنګې سنګر او بالاحصار په توګه کار اخېست نو بیا ((نادرشاه)) د دولسمې هجري په پای کې دغه کلاوې یومخ ونړولې که څه اوس یې یوازې د یوالونه پاتې دي ، دکلاوو دغه پخواني یادګارونه چې ډېره پراخه سیمه یې نیولې ده د دغې سیمې د ستر مدنیت او پراختیا او ښایست ګواهي وایي .(٧)

### [٣]ـــ د علامه ابن حبان زده کړې:

که څه هم داسې کره تاریخي شواهد په لاس کې نشته چې د نوموړي د زده کړو د پیل په اړه یې څه لیکلي وي، یوازې امام ذهبي رح دومره لیکلي چې : نوموړي زده کړې درى سوه هجري په پیل کې پیل کړې دي٨ چې دغه مهال شل کلن و ځکه دنوموړي په اړه ویل کیږي چې ټول عمر یې اتیا کاله و.

### په زده کړه پسې سفرونه:

له وړکتابه ډیر همتي و، په کم عمر یې زده کړې پیل کړیدي او بیا د لوړو دیني زده کړو ترلاسه کولو له پاره

امام ابن حبان رح په ډیر لوړ همت د علم په زده کړه پسې دهغه مهال اسلامي نړۍ تر څلوېښتو (۴۰) زیات ښارونه په پښو را وغوښتل ، لېږې ښارونه یې په خپل همت را نږدې کړل ، په هرعالم پسې د هغه کور ، وطن اوکلي ته ورغی ، زده کړې یې ترې وکړې او د حدیثو لوړ سندونه یې ترې ترلاسه کړل ، هغه ښارونه دادي چې نوموړي پکې زده کړې وکړې:

١ـ ((سجستان)). ٢ـ ((هرات)).
٣ـ ((مرو)). ۴ـ ((سنج )).
۵ـ ((صغد)). ۶ـ ((شاش)) اوسنی ((تاشکند)).
۶ـ ((بخاري)). ٧ـ ((نسا)).
٨ـ ((نیسابور)). ٩ـ ((أرغان)).
١٠ـ ((جرجان)). ١١ـ ((طهران)).
١٢ـ ((کرج)). ١٣ـ ((عسکر)).
١۴ـ ((مکرم)). ١۵ـ ((أهواز)).
١۶ـ ((بصرة)). ١٧ـ ((بغداد)).
١٨ـ ((کوفة)). ١٩ـ ((موصل)) .
٢٠ـ ((نصیبین)) . ٢١ـ ((رقة)).
٢٢ـ (( أنطاکیة)). ٢٣ـ ((طرسوس)).
٢۴ـ ((حمص)). ٢۵ـ ((دمشق)).
٢۶ـ ((بیروت )). ٢٧ـ ((صیدا)).
٢٨ـ (( رملة)). ٢٩ـ ((بیت المقدس)) .

---

٤ وګورئ : بلدان الخلافة الشرقیة " ص ٣٧٧ و ٣٨٣ ، ٣٨٤
٥ البدایة والنهایة " ١٢ / ٧٩ ، و " نزهة الخاطر " ١ / ٧٩ ،
٦ " تاریخ الدول الإسلامیة " ٢ / ٦٢٥ و ٦٣٠ ، " الأسرات الحاکمة ص ٤١٩ .
٧ بلدان الخلافة الشرقیة " ص ٣٨٤ .دائرة المعارف الإسلامیة " کې د (بست) تور وګورئ .
٨ سیر اعلام النبلاء : ١٦ ټوک مخ

۳۰ــ (( مصر))          ۳۱ــ اسکندریه او داسې نور....

اوس تاسو ووایاست چې دپخوانو علماوو څومره همت اوڅومره يې له علم سره يې مینه وه چې دومره ښارونه يې یوازې په پښو باندې را وغوښتل.چې یو ښار دنړۍ په یوه سر کې او بل يې په بل سر کې دی . او ترهغه پورې يې مزل وکړ څومره ابن حبیان په خپله وایي چې ما له شاش څخه تراسکندریه پورې له څه دپاسه دوه زره استادانوڅخه زده کړې وکړې نوموخه يې داده چې ماترڅومره هغه مهال مزل کیدای شوای دمادعلم له پاره کړیده.

ځکه هغه مهال ((شاش)) داسلامی نړۍ په ختیځ کې لېرې پروت ښار و ،له هغه هاخوا ترکان پراته وو چې داسلامي نړۍ وروسته پولې هغه مهال وې ۹او دې خواته اسکندریه هغه مهال داسلامی نړۍ وروستي بریدونه د لویدیځ لور ته ځکه له اسکندریه پورته لور هغه مهال فاطمیان واکمن چې اسلامي نړۍ ورسره راشه درشه نه لرله . که چېرته له هغه څخه وړاندې خواته کوم ښار وای نو نوموړی به خامخا ورغلی وای .

له همد ې امله دنوموړي په اړه امام ذهبی وایي چې : همت همدې ته وایي چې له علم اوپوهې سره سره په دومره لېرې پرتو ښارونه باندې راوګرځیده. (۱۰)

**[۳]ــ د علامه ابن حبان استادان:**

لکه دمخه چې یادونه وشوه نوموړي په خپلو پښوباندې څه دپاسه څلوېښت ښارونه راوغوښتل دی امام ابن حبان رحمه الله دخپل ((صحیح)) په سریزه کې لیکي : ما له شاش څخه تراسکندریه پورې په دومره سفرونه کې يې له څه دپاسه دوه زره استادانوڅخه زده کړې وکړې ، خونوموړي په دې ټولو استادانوکې یوازې په خپل صحیح کې له یونیم سل استادانوڅخه حدیثونه راویت کړی دي.

**[۴] ــ نومیالي استادان :**

**لومړی استاد : علامه موصلي رحمه الله :**

شیخ الاسلام ابویعلی موصلي دحدیثو استاد او حدیثو دنامتوکتاب ((مسند ابي یعلی)) لیکوال و په خپله نامتو او ثقه راوي یادیږي دحدیثو سند يې له امام نسایي څخه هم لوړ وپه درس کې دشاګردانو ځای نه کیده ، دغه نامتو محدث په دری سوه اوه (۳۰۷هـ )کې مړ دی . (۱۱) له نوموړي څخه امام ابن حبان په خپل صحیح کې (۱۱۷٤) حدیثونه روایت کړي دي.

**دوهم استاد : علامه نسوی رحمه الله :**

بل استاد يې هم دخراسان نامتو استاد اودعلامه اسحاق بن راهویه نامتو شاګرد علامه حسن د سفیان زوی چې الخراساني اونسوی سره يې شهرت درلود امام حاکم امام رازي يې زیاته ستاینه کړیده ، دغه نامتو امام د یوه مشهور مسند خاوند هم دی امام ابن حبان وایي چې : زه يې په جنازه کې وم دغه نامتو محدث په دری سوه دری هجري کې دروژې په میاشت کې وفات شو۱۲ له دغه نامتو محدث څخه ابن حبان ټول (۸۱۵) حدیثونه روایت کړي دي.

نوربیا......

---

۹ هغه مهال له شاش پورې خواته دګوبي لویه دښته پرته چې له هغې څخه پورې وتل یوه میاشت وخت غوښت وګورئ : د (( مارکو پولو یون لیکونه)) مخونه : ۸۵ ، ۸٦ .

۱۰ سیراعلام النبلاء : ١٦ / ٩٤ .

۱۱ دنوموړي دپیژندنې له پاره:" تذکرة الحافظ " ۲ / ۷۰۷ ، " سیر أعلام النبلاء " ١٤ / ١٧٤ . وګورئ

۱۲ دنوموړي دپیژندنې له پاره:" تذکرة الحافظ " ۲ / ۷۰۳ ، " سیر أعلام النبلاء " ١٤ / ١٥٧ . وګورئ

# په کندوزکې ماتې خوړلي ګوډاګيان او د طالبانو چلند ... !!؟

طالبـانو پـرون د کنـدوز ښـار تـر يـوې ورځنـۍ جګـړې وروسته تر خپلې ولکې لاندې راووست.

کندوز د هيواد په شمال کـې د هـر اړخيـز ستراتيژيک مرکزي ولايت حيثيت لري . کندوز مجاهدينو په داسې غير مترقبه ډول فتحه کړ چې هيڅ ډول ستري قرباني تـه يـې لله الحمد اړتيا پيدا نشوه ، بلکې دوښمن له وارخطايي له ډېر لږ مقاومت وروسته په تيښته خان يوې او بلې خوا ته غلى کړ .

په کابل کې ناستو مشرانو ګوډاګيانو يې له شرمه د ويلو څه نه درلودل ، پرته له دې دروغ او پروپاګنـد څخـه چـې پـه مجاهدينو پسې يې وواييې ، مزدورو رسنيو په لومړي سر کـې خبرونه خپاره کـړل چـې طالبـانو د کنـدوز ولـس تـه تکليـف ورکړى ، په داسې حال کې چې هيڅ نوع داسې پيښه د نمونې په ډول چا ونه ليدله چې طالبـانو دې څـوک زورولي او يـا دې عامه شتمنيو ته زيان رسولى وي ، بلکې بر عکس پر سوشيل ميډيا ډېرې داسې صحنې خپرې شوې چې د رژيم ګوډاګيان د تيښتې په حال کې پر ملکي وګړو ډزې کـوي ، د غـلا او چـور بيلګې يې هم وليدل شوې.

د ښار تر نيولو څو ساعته وروسـته د طالبـانو آميـر مـلا أخترمحمد منصور ولس ته د داډ ورکولو ترڅنګ مجاهدينو ته د لاندې څو مهمو ټکو لارښوونه وکړه:

۱ - مجاهدين دې د عملياتو له پاى ته رسيدو او نظامي اهدافو له ترلاسه کولو وروسته ټوله توجه د کندز ښـار د درانـه ولـس د سر، مـال، ملکيتونـو او عـزت سـاتنې تـه وګرځـوي، مجاهدين بايد بيدار و اوسي ، هيڅ چا ته اجازه ورنکړي چـې څوک د عام ولس سراو مال او يا عامه شتمنيو ته زيان ورسوي.

۲ - دکنـدز ښـاريان دې پـه دې خـبر وي، چـې اسـلامي امارت په شخصي اموالو د تعرض ، خپلسرو او بـې محـاکمې وژنو، لوټماريو اويا دچا د کورني حريم د مـاتولو نيـت او اراده نلري بلکې ددغسې کړنو او ګډوډيو مخه نيسي.

۳ - دکندز ښاريان دې د خپل سراو مـال د حفاظـت پـه اړوند هيڅ تشويش نه کوي،بې غمـه دې لـه معمـول سره سم دخپـل ورځنـي ژونـد چـارو تـه دوام ورکـړي. مـلي تجـاران، کـارګران،د شفاخانو،ښـوونځيو ، ښـاروالۍ او ټولـو خـدماتي بنسټونو کارکوونکي دې بيغمه ورځنۍ چـارې پيـل کـړي او د هيڅ ويرې او تشويش احساس دې نـه کـوي مجاهـدين ددوى ورونه دي او ددوى د سراو مال ساتنې ته ژمن دي.

۴ - د حکومتي ادارې اړوند چارواکو او عسکرو ته زمـوږ پيغام دادى چې د اسلامي امارت مجاهدين د انتقام فکر نلري ، بلکې له عفوې سره راغـلي دي . د دوى پـه وړانـدې د عفـوې دروازې خلاصې دي.

۵ - دا فتوحات دالله تعالى نصرت اوددې مجاهـد ولـس دقربانيو نتيجه ده لهذا دکابل ادارې چارواکي دې پـه جـرأت سره خپله ماتې ومنـي دمجاهـدينو لاس تـه راوړنې دې پرديـو استخباراتو ته نه منسوبوي اونه دې هم دخپل شکست انتقام پـه ړنـدو بمبـاريو او توپونـو سره لـه عـام ولـس نـه اخـلي او دمجاهدينو پرمختګونه دې ديوه تريخ حقيقت په ډول ومنـي او په سړه سينه دې دخپل راتلونکي او ټول هيـواد دمصلحت فکر وکړي ، نورهغه وخت تير شوى چې د دوستم غټې خبرې ، داشرف غنـي تيـر ايسـتونکي وعـدې او دغـربي رسـنيوپوچ تبليغات دې عامه ذهنيت اغفال کړي.

دا څوارلس کاله چې ولسي وګړي د ګوډاګي اربکي نظـام لـه مظـالمو سـخت زوريـدلي وو ؛ مجاهـدينو د خپـل أميـر د لارښوونو په رڼا کې له هغوى سره هغسې- مهربانـه چلنـد وکـړ چې بيلګه يې نه وه موندل شوې . او په دې سره يې د مـزدورو رسنيو او ګوډاګيانو ټولې دروغجنې هڅې په اوبو لاهو کړې .

مفتي شاهد

# دشهامت دار الافتاء

په شمسي باندې داوبه کيدونکيو ځمکو

## دنصف العشر دوجوب حکم!

له نبي عليه الصلوة والسلام څخه د حضرت انس بن مالك رضى الله عنه دمنقول شوي حديث شريف په رڼا کې، فقهاوو مؤنت او مشقت دهغو ځمکودنصف العشر لپاره دليل گرځولی، چې هغه په ارهټ، غټه بوکه، غويانو، بريښنايي موټرونويا ماشينونو سره اوبه کيږي، نو نن سبا چې کومې ځمکې په شمسي يا سولر اوبه کېږي، همدا دمؤنت او مشقت وجه پکې شتون لري، نو ځکه پدې ځمکو کې هم دعشر پرځای( نصف العشر)اخستل صحيح دي، دا ځکه چې شمسي په پيسو اخستل کيږي، داوبو لپاره ورته موټر نصب کيږي، کله نا کله عوارض هم کوي، چې پدې هم لگښت راځي ... (والله تعالى اعلم)

حوالې په لاندې ډول سره دي:

حَدَّثَنَا أبان بن عياش عن أنس بن مالك عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أنه قَالَ:" فيما سقت السماء أو سقي سيحا العشر, وفيما سقي بالغرب أو السواني أو النضوح نصف العشر". [الخراج لابى يوسف ج١ص٥٤].

قَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى : فأما القطائع فما كان منها سيحا فعلى العشر وما سقي منها بالدلو والغرب والسانية فعلى نصف العشر لمؤنة الدالية والغرب والسانية .

وإنما العشر والصدقة فِي الثمار والحرث من أرض العشر فما جَاءَت به الآثار والسنة العشر من ذلك عَلَى ما سقي سيحا ونصف العشر عَلَى ما سقي بالغرب والدالية والسانية , فهذا المجمع عليه من قول من أدركنا من علمائنا وما جَاءَت به الآثار. (الخراج لابى يوسف ج١ص٥١).

قوله: (ونصفه في مسقي غرب ودالية) أي ويجب نصف العشر فيما سقي بآلة للحديث. والغرب دلو عظيم، والدالية دولاب عظيم تديره البقر. وإن سقي بعض السنة بآلة والبعض بغيرها فالمعتبر أكثرها كما مر في السائمة والعلوفة، وإن استويا يجب نصف العشر نظرا للفقراء كما في السائمة، وظاهر الغاية وجوب ثلاثة أرباع العشر قوله: (ولا ترفع المؤن) أي لا تحسب أجرة العمال ونفقة البقر وكري الانهار وأجرة الحافظ وغير ذلك لان النبي صلى الله عليه وسلم حكم بتفاوت الواجب لتفاوت المؤنة فلا معنى لرفعها. أطلقه فشمل ما فيه العشر وما فيه نصفه فيجب إخراج الواجب من جميع ما أخرجته الارض عشرا أو نصفا إلا أن ما تكلفه يأخذه بلا عشر أو نصفه ثم يخرج الواجب من الباقي كما توهمه بعض الناس (البحرالرائق على كنزالدقايق ج٥ص١٢٨)

(وَمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ أَوْ دَالِيَةٍ أَوْ سَانِيَةٍ فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ)؛ لِأَنَّ الْمُؤْنَةَ تَكْثُرُ فِيهِ وَتَقِلُّ فِيمَا يُسْقَى بِالسَّمَاءِ أَوْ سَيْحًا وَإِنْ سُقِيَ سَيْحًا وَبِدَالِيَةٍ فَالْمُعْتَبَرُ أَكْثَرُ السَّنَةِ كَمَا مَرَّ فِي السَّائِمَةِ.

(وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ : فِيمَا لَا يُوسَقُ كَالزَّعْفَرَانِ ، وَالْقُطْنِ يَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ إذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهُ قِيمَةَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنْ أَدْنَى مَا يُوسَقُ ) كَالذُّرَةِ فِي زَمَانِنَا ؛ لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّقْدِيرُ الشَّرْعِيُّ فِيهِ فَاعْتُبِرَتْ قِيمَتُهُ كَمَا فِي عُرُوضِ التِّجَارَةِ (وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ : يَجِبُ الْعُشْرُ إذَا بَلَغَ الْخَارِجُ خَمْسَةَ أَعْدَادٍ مِنْ أَعْلَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ نَوْعُهُ .

فَاعْتُبِرَ فِي الْقُطْنِ خَمْسَةُ أَحْمَالٍ كُلُّ حِمْلٍ ثَلَاثُمِائَةِ مَنٍّ ، وَفِي الزَّعْفَرَانِ خَمْسَةُ أَمْنَاءٍ)؛ لِأَنَّ التَّقْدِيرَ بِالْوَسْقِ كَانَ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ أَعْلَى مَايُقَدَّرُ بِهِ نَوْعُهُ الشَّرْحُ قَالَ ( وَمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ أَوْ دَالِيَةٍ ) الْغَرْبُ الدَّلْوُ الْعَظِيمَةُ ، وَالدَّالِيَةُ الْمَنْجَنُونُ تُدِيرُهَا الْبَقَرَةُ .

وَذَكَرَ فِي الْمُغْرِبِ أَنَّ الدَّالِيَةَ جِذْعٌ طَوِيلٌ يُرَكَّبُ تَرْكِيبَ مَدَاقِّ الْأُرْزِ فِي رَأْسِهِ مِغْرَفَةٌ كَبِيرَةٌ يُسْتَقَى بِهَا ، وَالسَّانِيَةُ النَّاقَةُ الَّتِي يُسْتَقَى عَلَيْهَا .

وَقَوْلُهُ ( فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ ) أَيْ عَلَى حَسَبِ اخْتِلَافِ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَقَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ عِنْدَهُ يَجِبُ نِصْفُ الْعُشْرِ مِنْ غَيْرِ شَرْطِ النِّصَابِ وَالْبَقَاءِ ، وَعِنْدَهُمَا أَيْضًا نِصْفُ الْعُشْرِ لَكِنْ بِشَرْطِ النِّصَابِ وَالْبَقَاءِ كَمَا بَيَّنَّا ، وَمَا ذَكَرَهُ مِنْ الدَّلِيلِ ظَاهِرٌ وَقَالَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ : عَلَّلَ بَعْضُ مَشَايِخِنَا بِقِلَّةِ الْمُؤْنَةِ فِيمَا سَقَتْهُ السَّمَاءُ وَبِكَثْرَتِهَا فِيمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ أَوْ دَالِيَةٍ ، وَهَذَا لَيْسَ بِقَوِيٍّ فَإِنَّ الشَّرْعَ أَوْجَبَ الْخُمُسَ فِي الْغَنَائِمِ وَالْمُؤْنَةُ فِيهَا أَكْثَرُ مِنْهَا فِي الزِّرَاعَةِ ، وَلَكِنَّ هَذَا تَقْدِيرٌ شَرْعِيٌّ فَنَتَّبِعُهُ وَنَعْتَقِدُ فِيهِ الْمَصْلَحَةَ وَإِنْ لَمْ نَقِفْ عَلَيْهَا .

وَقَوْلُهُ (وَإِنْ سُقِيَ سَيْحًا وَبِدَالِيَةٍ ) وَاضِحٌ . (العناية شرح ج٣ص١٦٩).

(وما سقى بغرب): أي دلو (أو دالية): أي دولاب (أو سانية): أي بعير يسنى عليه، أي يستقي من البئر. مصباح (ففيه نصف العشر في القولين): أي على اختلاف القولين المارين بين الإمام وصاحبيه في اشتراط النصاب والثمرة الباقية وعدمها قال في الدر: وكتب الشافعية "أو سقاه بماء اشتراه" وقواعدنا لا تأباه، ولو سقى سيحا وبآلة اعتبر الغالب، ولو استويا فنصفه، (اللباب فى شرح الكتاب ج١ص٧٧)

قوله: (غرب) بفتح المعجمة وسكون الراء. قوله: (ودالية) بالدال المهملة.

قوله: (أي دولاب) في المغرب الدولاب بالفتح: المنجنون التي تديرها الدابة، والناعورة: ما يديرها الماء، والدالية: جذع طويل يركب تركيب مداق الارز، وفي رأسه مغرفة كبيرة يستقي بها اه.

وفي القاموس: الدالية المنجنون، والناعورة: شئ يتخذ من خوص يشد في رأس جذع طويل، والمنجنون الدولاب يستقى عليه اه.

قوله: (لكثرة المؤنة) علة لوجوب نصف العشر فيما ذكر.

قوله: (وقواعدنا لا تأباه) كذا نقله الباقاني في شرح الملتقى عن شيخه البهنسي، لان العلة في العدول عن العشر إن نصفه في مستقى غرب ودالية هي زيادة الكلفة كما علمت، وهي موجودة في شراء الماء، ولعلهم لم يذكروا ذلك، لان المعتمد عندا أن شراء الشرب لا يصح، وقيل إن تعارفوه صح وهل يقال عدم شرائه يوجب عدم اعتباره أم لا؟ تأمل.

نعم لو كان محرزا فإنه يملك، فلو اشترى ماء بالقرب أو في حوض ينبغي أن يقال: بنصف العشر لان كلفته ربما تزيد على السقي بغرب أو دالية. (حاشية ردالمحتارج ٢ص٣٥٨)

# مجاهد ته

اوښکه غونډي سپین جانانه ګوره چي بې زړه نشي
دنګ اوسه چناره، چي راکوږ لکه کاږه نشي

سیوري ته ویدې هیلي دي بیا بیا زړه ته یادي کړه
پام کوه له خپل مسیره وا نه وړې پیاده نشي

دومره امیدونه دي د نوم تر پلو غوټه دي
څومره چي آهونه وو ، اشنا اوس چي بې څه نشي

خپل ځان نه حساب واخله دخدای ترسخت حساب وړاندي
ای دسترګوتوره! چي دبیا په غم اخته نشي

یادساته چي خدای او دا ولس به چرته خپل نکړي
څویې په خدمت ذره ذره لکه رانجه نشي

زموږ دازادۍ ناوکۍ پلوري دلیلن بچیان
ته که یې ګټلو ته ورا نشي ،مرکه نشي

څاري دتاریخ قلم ستا کړه وړه ورته خیر اوسه
ای دوخت ایډیالـه ! دنفاق په رنځ اخته نشي

اوښکي او دعاوي دي همیش دبریا رمز وي
لپي بندي نکړې او چي ټوله شپه ویده نشي

وینه د اولس به دناټو بچي ترې وزبېښي
ته که په دښمن فدایي برید نشي، حمله نشي

ډیر وحبیبي پښان بې وزلو به دي لار ورشي
ګوره دزړه سره ! خدای ته شانکړې غصه نشي

